يُفْتَنُوْنَ فِيْ كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوْبُوْنَ

ازمېښت كيږي غورزولي شي | په هر كال كښې | يو ځل | يا | دوه ځله | بيا | دوى توبه نه كوى

هر كال يو ځل يا دوه ځله په يو آفت كښې غورزولے شي ، خو بيا هم توبه نه وباسي

وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿١٢٦﴾ وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ

او نه دوى | نصيحت اخلى | او هر كله چه | نازلولے شي | يو سورت | (نو) وګورى | ځينے له دوى نه

او نه تربے نه عبرت اخلى ، او هر كله چه يو توبے سورت را نازل شي ، نو دوى يو بل ته

اِلٰى بَعْضٍ ؕ هَلْ يَرٰىكُمْ مِّنْ اَحَدٍ ثُمَّ انْصَرَفُوْا ؕ صَرَفَ اللّٰهُ

ځينو ته | چه آيا ګورى تا نه | څوک سړے ؟ | بيا | دوى واپس شي | واړول | الله

ګورى ، چه آيا تاسو ته څوک (مسلمان) خو ګورى نه ؟ بيا دوى (رغلى غونډې) وځى ، الله تعالىٰ د دوى زړونه

قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿١٢٧﴾ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ

زړونه د دوى | ځكه چه دوى | (داسے) خلق دى | چه پوهه نه لرى | راغلے دے تاسو ته | يو پيغمبر

(د ايمان نه) واړول ولے چه دوى داسے خلق دى چه نه پوهيږى ۔ (اے خلقو!) تاسو ته هم له تاسو نه يو رسول

مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ

له تاسو نه | ګران دے | په هغه | ستاسو تكليف | ډير زيات خواهشمند دے ستاسو | په مومنانو

راغلے دے ، ستاسو تاوان په هغه بد لګى ، ستاسو د ښيګړے ډير خواهشمند دے ، د مؤمنانو په

رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٢٨﴾ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ ۖ لَآ اِلٰهَ

زيات مهربان | رحم كوونكے دے | بيا (هم) كه چرے | دوى مخ واړوى | نو ووايه | كافى دے ماله الله | نشته څوک معبود

حقله ډير زړه سواندے او مهربان دے ۔ نو كه اوس هم دوى مخ ګرځوى نو ته ووايه چه ماله يوازے الله بس دے ، بے د هغه نه

اِلَّا هُوَ ؕ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ﴿١٢٩﴾

بے له هغه نه | هم په هغه | ما توكل وكړو | او هم هغه دے | مالک | د عرش | لوئے

بل معبود نشته ، په هغه مې توكل دے او هغه د لوئے عرش مالک دے ۔

سُوْرَةُ يُوْنُسَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | تِسْعُ اٰيٰتٍ وَّاَحَدَ عَشَرَ رُكُوْعًا

سورة يونس مكى دے او په دے كښے | (شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډير زيات رحم كوونكے دے | يو سل نهه آيتونه او يوولس ركوعګانے دى

شروع كوم د الله په نوم سره چه لوئے مهربان د ډير زيات رحم خاوند دے

الٓرٰ ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ﴿١﴾ اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا

الٓرٰ | دا آيتونه دى | د كتاب | خاوند د حكمت | آيا خلقو ته وشو | تعجب

الف ۔ لام ۔ را ، دا د داسے كتاب آيتونه دى چه په حكمت پوره دے ۔ آيا دے خلقو ته دا خبره عجيبه ښكاره

اَنْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ وَ

(د دے خبرے) چه مونږ حكم وليږلو | يو سړى ته | له دوى نه | چه | ووېروه | خلق | او

شوه چه مونږ په دوئ كښے يو سړى (نبي عليه السلام) ته دا وحى راولېږله چه خلق (د الله د نيولو نه) وېروه ، او

بَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِنْدَ رَبِّهِمْ

زيرے ورکړه | مسلمانانو ته | چه دوی ډپاره دی | مرتبه | رښتینی | د دوی د رب سره

چه څوک ایمان راوړی هغوی ته زیرے ورکړه چه هغوی له د خپل رب سره اوچته مرتبه مقرر ده،

قَالَ الْكٰفِرُوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيْنٌ ۝٢ اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ

ووئیل | کافرانو | بیشکه دے | جادوګردے ښکاره | بیشکه ستاسو رب | الله (دے) | کوم چه

(او په دے خبره) کافران وائی چه دا سړے خو ښکاره جادوګر دے. بیشکه ستاسو رب صرف الله تعالی دے

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى

پیدا کړل | اسمانونه | او زمکه | په شپږو | ورځو کښے | بیا قائم شو

چه اسمانونه او زمکه ئے په شپږو ورځو کښے پیدا کړل، بیا په عرش بانډ

عَلَى الْعَرْشِ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ ۭ مَا مِنْ شَفِيْعٍ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ

په عرش بانډ | تدبیر کوی | د کار | نشته دے څوک سفارش کوونکے | مګر | پس

قائم شو، هغه د هر کار انتظام کوی، د ده په وړاندې څوک سفارش نه شی کولے مګر پس له دے نه چه

اِذْنِهٖ ۭ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ۭ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝٣

له اجازت د ده نه | هم دا | الله | ستاسو رب دے | پس عبادت کوئ د ده | پس آیا تاسو غور نه کوئ.

هغه د ده اجازت ورکړی (خلقو) هم دا الله ستاسو رب دے هم د ده عبادت کوئ آیا تاسو غور نه کوئ (یاد ساتئ)

اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا ۭ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ۭ اِنَّهٗ يَبْدَؤُا

د ده طرف ته | ستاسو واپس تلل دی | د ټولو | وعده ده د الله | رښتینی | بیشکه هم هغه اول ځل پیدا کوی

هغه ته ستاسو د ټولو واپسی ده، دا د الله تعالی رښتینی وعده ده، مخلوق اول هم هغه پیدا

الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

مخلوق | بیا به هم هغه دوباره ژوندی کوی هغه | چه جزا ورکړی | هغو کسانو ته | چه ایمان ئے راوړے دے | او عمل ئے کړے دی

کړے دے او بیا به ئے هم هغه دوباره ژوندی کوی چه هغه خلقو ته په انصاف بدله ورکړی چه ایمان ئے راوړے

الصّٰلِحٰتِ بِالْقِسْطِ ۭ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ

نیک | په انصاف سره | او هغه کسان | چه کافران شول | دوی له | څښل دی | له ګرمو اوبو نه

دے او نیک کارونه ئے کړی دی، او هغه خلق کوم چه انکار وکړو، هغوی له د څښلو د پاره ایشیدلے اوبه

وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ۝٤ هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ

او عذاب | دردناک | په سبب د هغے چه | دوی به کفر کولو | هم هغه دے چا چه | جوړ کړو

او د کفر او انکار په وجه ورله دردناک عذاب مقرر دے. الله هغه ذات دے چه نمر ئے

الشَّمْسَ ضِيَاۗءً وَّالْقَمَرَ نُوْرًا وَّقَدَّرَهٗ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوْا عَدَدَ

نمر | پرقیدونکے | او سپوږمۍ | روښانه | او مقرر ئے کړل د دے | منزلونه | چه تاسو معلوم کړئ | شمیر

پرقیدونکے جوړ کړو او سپوږمۍ ئے ځلوله او هغې له ئے سم په حساب منزلونه مقرر کړل، چه تاسو ترے

السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ ط مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ اِلَّا بِالْحَقِّ ج

دَ کلونو | او حساب | نۀ دی پیدا کړی | الله | دا (هرڅۀ) | مګر | برحق

دَ کلونو په شمیر او (دَ وخت) په حساب پوهه شئ ـ الله تعالی دا څیزونه په حق وصداقت سره پیدا کړی دی

يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝٥ اِنَّ فِي اخْتِلَافِ

هغۀ بیانوی | آیتونه | دَ هغۀ قوم دَ پاره | چه پوهیږی | بیشکه | په بدلیدو کښے

هغۀ علم والو دَ پاره نخښے پرانستلی بیانوی ـ بیشکه دَ شپے او ورځے په بدلیدو کښے او

الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ

دَ شپے | او دَ ورځے | او څۀ چه | پیدا کړل الله | په آسمانونو | او زمکه کښے | نخښے دی

څۀ چه الله تعالی په آسمانونو او زمکه کښے پیدا کړی دی په دے ټولو کښے هغو خلقو دَ پاره

لِّقَوْمٍ يَّتَّقُوْنَ ۝٦ اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا وَرَضُوْا

دَ هغۀ قوم دَ پاره | چه ویریږی | بیشکه | هغۀ خلق چه | اُمید نۀ لری | زمونږ دَ ملاقات | او خوشحاله دی

نخښے دی کوم چه پرهیزګاره دی ـ بیشکه هغۀ خلق کوم چه زمونږ دَ ملاقات اُمید نۀ لری او هم دَ

بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَاطْمَاَنُّوْا بِهَا وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنْ اٰيٰتِنَا

په ژوند | دَ دُنیا | او مطمئن دی | په دے | او هغۀ کسان چه هغوی | له نخښو زمونږ نه

دنیا په ژوند خوشحاله او هم په دے مطمئن دی ، او هغۀ خلق چه زمونږ دَ آیتونو نه

غٰفِلُوْنَ ۝٧ اُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝٨

بے خبره دی | هم دَ دوی ځائے دے | دوزخ | په سبب دَ هغۀ عمل | چه دوی به کولو ـ

بے خبره دی ، دَ داسے خلقو ځائے دَ دوی دَ عملونو په وجه دوزخ دے ـ

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ يَهْدِيْهِمْ رَبُّهُمْ

بیشکه هغۀ چا چه | ایمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل | نیک | لاره به وښائی دوی ته | رب دَ دوی

بیشکه هغۀ خلق چه ایمان ئے راوړو او نیک عملونه ئے وکړل ، هغوی به خپل رب دَ ایمان په

بِاِيْمَانِهِمْ ج تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝٩

په وجه دَ ایمان دَ دوی | بهیږی به | دَ هغے لاندے | نهرونه | په باغونو کښے | دَ نعمت

برکت (داسے ځایونو ته) ورسوی چه لاندے به ترے نه (نهرے) ویالے بهیږی دَ عیش په باغونو کښے هلته

دَعْوٰىهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ج

بلنه دَ دوی به وی | په هغے کښے | پاک دے ذات ستا | اے الله ! | او دَ دوی دعا به وی | په هغے کښے | سلام

به هغوی وائی چه " اے الله! ته پاک یئے " او هلته به دَ هغوی (یو بل سره) دعا دا دی سلامتی وسیږی

وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝١٠ ع

او خاتمه دَ | دَ دوی دَ دُعا | چه ټول تعریفونه | الله لره دی | چه رب دے | دَ ټولو جهانونو

او دَ هغوی دَ دُعا دروستنی وینا به (همیشه) دا وی چه ټول تعریف الله لره دے چه دَ ټول مخلوق پالونکے دے

وَلَوْ يُعَجِّلُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ

اوکهٔ چرے تندی کولے | اللّٰه | خلقو ته | تکلیف (رسولو کبنے) | لکه چه دوی تندی غواړی | په ښیګړه (رسیدلو کبنے)

اوکهٔ چرے اللّٰه دَ دوی دَ بدو عملونو سزا دوی ته په تندئ ورکولے لکه چه دوی په تندئ ښیګړه غواړی

لَقُضِيَ اِلَيْهِمْ اَجَلُهُمْ ؕ فَنَذَرُ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ

نو پوره کړے شوے به وه | دوی دَ پاره | موده دَ دوی | پس مونږ پریږدو | هغه خلق چه | اُمید نهٔ لری

نو دَ دوی میعاد به (یبخوا) پوره شوے وو ، نو مونږ هغه خلق چه زمونږ دَ ملاقات اُمید نهٔ لری

لِقَآءَنَا فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ⑪ وَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ الضُّرُّ

زمونږ دَ ملاقات | دَ دوی په نافرمانئ کبنے | سرو هلی بروهلی | او هر کله چه ورسیږی | انسان ته | تکلیف

پخپله سرکشئ کبنے سرو هلی بروهلی پریږدو ۔ او هر کله چه انسان ته تکلیف رسی نو هغه

دَعَانَا لِجَنْۢبِهٖٓ اَوْ قَاعِدًا اَوْ قَآئِمًا ۚ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ

نو بلی مونږه | (ملاست) په ډډه | یا په ناسته | یا په ولاړه | بیا هر کله چه | لرے کړو مونږ | له دهٔ نه

وخت مونږ بلی هم په ملاسته ، هم په ناسته او هم په ولاړه ، بیا هر کله چه مونږ دَ دهٔ تکلیف

ضُرَّهٗ مَرَّ كَاَنْ لَّمْ يَدْعُنَآ اِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ ؕ كَذٰلِكَ

دَ دهٔ تکلیف | نو دے روان شی | لکه چه مونږ دهٔ هیڅ بللی نه وو | دے تکلیف (لرے کولو له) | چه دهٔ ته رسیدلے وو | دغه شان

لرے کړو نو دا سے روان شی لکه چه دهٔ هیڅ چرے په دغه سختۍ کبنے مونږ رابللی قدرله هم نهٔ وو، دغه شان

زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ⑫ وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا

ښائسته کړے شول | حد نه تیریدونکو ته | هغه عملونه چه دوی کول | او یقیناً | هلاک کړی دی مونږ

حد نه تیریدونکو ته دَ هغوی عملونه ښهٔ معلومیږی ـــــ ۔ او مونږ له تاسو نه وړاندې ډیر قومونه

الْقُرُوْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا ۙ وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ

(هغه) اُمتونه | چه تاسو نه وړاندې وو | هر کله چه دوی ظلم وکړو | او راغلی وُو دوی ته | پیغمبران دَ دوی

هلاک کړل هر کله چه دوئ ظلم وکړو ، حال دا دے چه دوی ته دَ دوی پیغمبران په

بِالْبَيِّنٰتِ وَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِي

په (روښانه) نخښو سره | او نهٔ وُو دوی (داسے) | چه ایمان ئے راوړے وے | دغه شان | مونږ سزا ورکوو

ښکاره نخښو سره راغلی وو، مګر دے دَ پاسه هم دوی داسے نهٔ وو چه ایمان ئے راوړے وے ، مونږ مجرمانو خلقوله

الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ⑬ ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِي الْاَرْضِ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

قوم | دَ مجرمانو ته | بیا مونږ کړئ تاسو | نائبان | په زمکه کبنے | دَ هغوی نه پس

هم دغسے سزا ګانے ورکوو ۔ بیا دَ دوی نه پس مونږ تاسو دَ زمکے په مخ باندے نائبان مقرر کړئ

لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ⑭ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيَاتُنَا بَيِّنٰتٍ

چه مونږ وګورو | (چه) څنګه | تاسو عمل کوئ | او هر کله چه لوستلے شی | په دوی باندې | زمونږ آیتونه | واضحه

چه مونږ وګورو چه تاسو څنګه عمل کوئ ۔ او هر کله چه دوی ته زمونږ ښکاره آیتونه ولوستلے شی

قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَآ

نو وائی | هغه خلق چه | اُمید نهٔ لری | زمونږ دَ ملاقات | چه راوړه | قرآن | بے له دے نه

نو څوک چه زمونږ دَ ملاقات اُمید نهٔ لری هغوی وائی چه دَ دے نه بغیر څه بل قرآن راوړه

اَوْ بَدِّلْهُ ؕ قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآئِ نَفْسِيْ ۚ

یا بدل کړه دا | دوایه | نهٔ دے زما دا حق | چه زهٔ بدل کړم دا | دَ خپل ځان دَ طرف نه

یا دا بدل کړه، ورته ووایه چه زهٔ دا نهٔ شم کولے، چه دَ خپل ځان نه دِ دے کښے رد و بدل وکړم

اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ۚ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ

زهٔ پیروی نه کوم | مګر دَ هغه څه | چه وحی کیږی | زما طرف ته | بیشکه زهٔ ویریږم | که چرے نافرمانی وکړم زهٔ

زهٔ خو بس په هغه حکم پسے روان یم کوم چه ماته دَ وحی په ذریعه راؤرسی، که زهٔ دَ خپل رب (دحکم) نافرمانی

رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ⑮ قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا تَلَوْتُهٗ

دَ خپل رب | دَ عذاب نه | دَ ورځے | لوئے | دوایه | که چرے الله غوښتلے | تو ما به نهٔ وو لوستلے دا

وکړم نو دَ (قیامت دَ) لوئے ورځے دَ عذابه ویریږم ۔ ورته ووایه چه که دَ هغه ذاتے رضا وے نو ما به دا کلام تاسو

عَلَيْكُمْ وَلَآ اَدْرٰىكُمْ بِهٖ ۖ فَقَدْ لَبِثْتُ فِيْكُمْ عُمُرًا مِّنْ قَبْلِهٖ ؕ

په تاسو | او نهٔ به وو خبردار کړی تاسو په دے | پس بیشکه پاتے شوے یم زهٔ | ستاسو مینځ کښے | یوه موده | له دے نه وړاندِ

ته نهٔ وو اوړولے نهٔ دے او نهٔ به الله تاسو خبر کړی وئ ۔ او بیا زهٔ خو په تاسو کښے دَ دے نه وړاندِ هم ډیر عمر پاتے شوے یم

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ⑯ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا

پس آیا تاسو نهٔ پوهیږئ | پس څوک | زیات ظالم دے | دَ هغه چا نه | چه وتړی | الله باندِ | دروغ

نو آیا تاسو دَ عقل نه کار نهٔ اخلئ ۔ نو دَ هغه چا نه غټ ظالم به بل څوک وی چه په الله باندِ دَ دروغو تهمت

اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْمُجْرِمُوْنَ ⑰ وَيَعْبُدُوْنَ

یا دروغ وګڼړی | دَ هغهٔ آیتونه | بیشکه فلاح نهٔ بیا مومی | مجرمان خلق | او دوی عبادت کوی

تړی یا دَ هغهٔ احکام دروغ ګڼړی نو یاد ساتئ چه دَ داسے مجرمانو خلاصے نشته ۔ او دوی دَ الله تعالیٰ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُوْلُوْنَ

بے له خدائے نه | دَ هغه څیز چه | نهٔ نقصان رسوی دوی ته | او نهٔ نفع رسوی دوی ته | او دوی وائی

نه سوا دَ داسے څیزونو عبادت کوی چه نهٔ ورته نقصان رسولے شی او نهٔ فائده او وائی چه

هٰٓؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ قُلْ اَتُنَبِّـُٔوْنَ اللّٰهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ

دا (بتان) خو | زمونږ سفارشیان دی | په نزد دَ الله | دوایه | آیا تاسو خبروړکوئ | الله ته | دَ هغهٔ څه | چه نهٔ دے پوهه

دوی دَ الله تعالیٰ په دربار کښے زمونږ سفارشیان دی. ورته ووایه چه آیا تاسو الله تعالیٰ دَ هغه خبرو نه

فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ⑱

په آسمانونو کښے | او نهٔ په زمکه کښے | هغه پاک | او ډیر اُوچت دے | له هغه څه نه | چه دوی ئے شریک جوړوی

خبروئ کوم چه هغهٔ ته نهٔ خو په آسمانونو کښے معلوم دی او نهٔ په زمکه کښے، هغه پاک دے او دَ دوی دَ شرک نه ډیر اُوچت دے

وَمَا كَانَ النَّاسُ اِلَّآ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَاخْتَلَفُوْا ؕ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ

او نه ؤ | خلق | مګر يو امت | بيا دوی اختلاف وکړو | او که چيرته نه وې | يو خبره

او (په شروع کښې) ټول خلق صرف د يو جماعت وو بيا په دوی کښې اختلاف پيدا شو ، او که ستا د رب د طرف نه

سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيْمَا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ⑲

د وړاندې (فيصله شوې) | ستا د رب له طرف نه | نو فيصله به شوې وه | د دوی په مينځ کښې | په کومه خبره کښې چه | دوی اختلاف کوو

يوه خبره اول فيصله شوې نه وې ، نو د دوی ترمينځه په دې اختلاف په حقله (پخوا) فيصله ورکړې شوې وه

وَيَقُوْلُوْنَ لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۚ فَقُلْ

او دوی وائی | ولې نازله نه شوه | په ده | (څه) نخښه | د ده د رب د طرف نه | پس ووايه

او دوی وائی چه د دوی د رب د طرف نه په دوی باندې څه معجزه ولې نازله نه شوه ؟ نو ته ورته ووايه

اِنَّمَا الْغَيْبُ لِلّٰهِ فَانْتَظِرُوْا ۚ اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ⑳

چه بيشکه علم د غيبو الله ته (معلوم) دې | پس انتظار کوئ | بيشکه زه (هم) | تاسو سره | له انتظار کوونکو نه يم

چه د غيبو علم خو صرف الله تعالیٰ ته دې نو تاسو انتظار وکړئ زه به هم تاسو سره انتظار کوم.

وَاِذَآ اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً مِّنْۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُمْ

او هر کله چه | مونږ وڅکوؤ | خلقوته | (د) رحمت (مزه) | پس له تکليف نه | چه رسيدلې وی دوی ته

او هر کله چه مونږ خلقوته د تکليف رسيدلو نه پس د رحمت مزه وڅکوؤ ، نو

اِذَا لَهُمْ مَّكْرٌ فِيْٓ اٰيَاتِنَا ؕ قُلِ اللّٰهُ اَسْرَعُ مَكْرًا ؕ اِنَّ

(نو) فوراً | دوی چلتکې کوی | زمونږ په آيتونو کښې | ووايه الله | ډير زيات تيز دې | په چلتکوماتولو کښې | بيشکه

دوی فوراً زمونږ د آيتونو په حقله فريبونه شروع کړی (اے نبی!) ووايه چه الله تعالیٰ د مکر سزا ډير زر ورکوی

رُسُلَنَا يَكْتُبُوْنَ مَا تَمْكُرُوْنَ ㉑ هُوَ الَّذِيْ يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ

زمونږ رالیږلې شوی | ليکی | کوم چلتکې چه تاسو کوئ | دې هغه ذات دې | چه روانوی تاسو | په اوچه

بيشکه چه زمونږ فرښتې ستاسو فريبونه لګيادی ليکی . الله تعالیٰ هغه ذات دې چه تاسو په اوچه مزکه

وَالْبَحْرِ ؕ حَتّٰٓى اِذَا كُنْتُمْ فِي الْفُلْكِ ۚ وَجَرَيْنَ بِهِمْ

او په درياب کښې | تردې چه | هر کله تاسو يئ | په کشتئ کښې | او روانې شوې کشتئ په سورلو خپلو

او په سمندر کښې ګرځوی ، تردې چه هر کله تاسو په کشتئ کښې سواره شئ او هغه کشتئ داخلق د موافق

بِرِيْحٍ طَيِّبَةٍ وَّفَرِحُوْا بِهَا جَآءَتْهَا رِيْحٌ عَاصِفٌ

په موافق بادونو سره | او دوی خوشحاليږي | په دې سره | نو راشی په دې (کشتو) | سيلئ سخته

بادونو په ذريعه روان کړی او دوی پرې خوشحاله شی نو په دې کښې (ناګهانه) پرې د (مخالف) باد يوه

وَّجَآءَهُمُ الْمَوْجُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَّظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ اُحِيْطَ بِهِمْ ۙ

او راغلې په دوی | چپې | له هر طرف نه | او دوی خيال کوی | چه دوی | راګير شول

چپه راشی او د هرې غاړې نه پرې د اوبو چپې راخورې شی او دوی پوهه شی چه (بس) اوس سم راګير شو.

دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ لَئِنْ اَنْجَيْتَنَا

دوی بلی الله | په خالص کولو | هغهٔ دَپاره | عبادت | کهٔچرے | تا خلاصے راکړو مونږ ته

نو هغه وخت الله تعالیٰ ته آواز وکړی ډیر په اخلاص سره ، چه که تا مونږ دَ دے (طوفان) نه خلاص

مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٢٢﴾ فَلَمَّاۤ اَنْجٰىهُمْ

له دے (غرقابئ) نه | نو مونږ به ضرور یُو | له شکر کښ اړو نه | پس هر کله چه | هغهٔ خلاصے ورکړو دوی ته

کړو نو مونږ به ستا ډیر ډیر شکر ونه ادا کړو ۔ خو هر کله چه الله تعالیٰ ورته نجات ورکړی نو

اِذَا هُمْ يَبْغُوْنَ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ

نو هغه وخت دوی | بغاوت شروع کړو | په زمکه کښے | په ناحقه | اے خلقو !

لا ساعت تیر نهٔ وی چه دوی دَ زمکے په مخ بر ناحقه سرکشی شروع کړی اے خلقو !

اِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلٰۤى اَنْفُسِكُمْ ۙ مَّتَاعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۫ ثُمَّ اِلَيْنَا

بیشکه ستاسو سرکشیٔ (وبال) | ستاسو په ځانونو (به پریوځی) | (داخو) سامان دے | دَ ژوند دَ دُنیا | بیا زمونږ طرف ته

دا ستاسو سرکشی هم ستاسو په خپلو سرونو راپریوتونکے ده، دَ دُنیا ژوندُن (دَ یو څو ورځو) فائده ده، بیا ستاسو

مَرْجِعُكُمْ فَنُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٢٣﴾ اِنَّمَا مَثَلُ

ستاسو واپس راتلل دی | بیا به مونږ وښایو تاسو ته | څهٔ چه | تاسو کول ۔ | بیشکه | مثال

هم مونږ ته واپسی ده نو مونږ به درته ستاسو ټول کارونه ښهٔ په ګوته کړو بیشکه دَ دنیا دَ ژوند مثال

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ

دَ ژوند | دَ دَنیا | په شان دَ اوبو دے | چه رالیږلے کوو مونږ هغه | له آسمان نه | بیا په خپل مینځ کښے ملاؤ شی

دَ هغه اوبو په شان دے کومے چه مونږ له آسمان نه اُوروَلے بیا دِے اُوبو سره په

بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ مِمَّا يَاْكُلُ النَّاسُ وَالْاَنْعَامُ ؕ حَتّٰۤى

دے سره | زرغونه | دَ زمکے | له کومے نه چه خوری | خلق | او څاروی | تر دے چه

ملاویدلو دَ زمکے سبزه ښه راوُختله کومه چه انسانان او حیوانان خوری ، تر دے چه زمکه (په

اِذَاۤ اَخَذَتِ الْاَرْضُ زُخْرُفَهَا وَازَّيَّنَتْ وَظَنَّ اَهْلُهَاۤ اَنَّهُمْ

هر کله | ونیولو | زمکے | خپل رونق | او ښائسته شوه | او خیال وکړو | زمکے والؤ | چه دوی

ښهٔ شان) خپل رونق ته ورسیدله او ښائسته ښکاره شوه نو دَ دے مالکانو داخیال وُکړو چه دوی

قٰدِرُوْنَ عَلَيْهَاۤ ۙ اَتٰىهَاۤ اَمْرُنَا لَيْلًا اَوْ نَهَارًا

قدرت لری | دے (نه په فائده اخستلو) باندِ | نو (ناګهانه) راورسیدو په دے | زمونږ حکم | دَ شپے | یا دَ ورځے

په دے باندِ پوره قدرت لری ، په دِے کښے (ناګهانه) زمونږ حکم (عذاب) دَ شپے یا دَ ورځے

فَجَعَلْنٰهَا حَصِيْدًا كَاَنْ لَّمْ تَغْنَ بِالْاَمْسِ ؕ كَذٰلِكَ

پس مونږ کړلو هغه | دَ ریبلے شوی فصل (په شان) | لکه چه هغه هډو دو نه | پرون | دغه شان

راورسیدو نو هغه مو داسے سپینه ډاګه کړه لکه چه پرون په کښے هډو څهٔ دو نه ، هم دغه شان

نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿٢٤﴾ وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا

موږ بیانوو | مخښتې | هغه خلقو د پاره | چه غور فکر کوي | او الله | راغواړي

څیلې نخښې هغو خلقو د پاره په تفصیل سره بیانوو چه د فکرنه کار اخلي. او (د دے په مقابله کښې) الله تعالیٰ

اِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ؕ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٢٥﴾

د سلامتۍ د کور (جنت) طرف ته | او ښايي | هغه چاته | چه غواړي | لاره | نيغه

(تاسو) د سلامتیا کور ته رابلي او د چا په حقله ئے چه رضا شي نو په نيغه لاره ئے روان کړي.

لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ ؕ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ

هغو خلقو له | چه نيكي وكړي | نيكه بدله ده | او زياتي هم | او نه | به راخوريږي | په مخونو د دوي

چا چه د نيكۍ لار واخسته هغوی له خپله نيكي هم ده او زياتے (ورپسے) هم ، د هغوی په مخونو به نه تيارهٔ

قَتَرٌ وَّلَا ذِلَّةٌ ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٦﴾

تور والے | او نه ذلت | هم دا دي | جنتيان | دوي به په دے كښې هميشه وسيږي

راخوريږي او نه ذلت هم دغه خلق جنتيان دي او تل تر تله به پكښې وسيږي

وَالَّذِيْنَ كَسَبُوا السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۢ بِمِثْلِهَا ۙ وَتَرْهَقُهُمْ

او كومو خلقو چه وكړل | بد كاروونه | (نو) بدله | د بدۍ | په شان د هغے ده | او خوريږي به شي په دوي

او چا چه (ځان له) بدۍ گټلي وي نو د بدۍ سزا به هم بدي وي او ذلت به پرے

ذِلَّةٌ ؕ مَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ كَاَنَّمَآ اُغْشِيَتْ

رسوائي | نه به وي دوي د پاره | د الله نه | (څوك) بچ كوونكے | لكه چه | اغوستلے شوي وي

راخور شي او هيڅوك به ئے د الله (د عذاب) نه بچ نه كړي ، د هغوی په مخونو به داسے تيارے

وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ مُظْلِمًا ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ

د دوي مخونو ته | ټوټے | د شپے | توړے تيارے | هم دا خلق | دوزخيان دي

ښكاري لكه چه د توړے شپے ټوټے پرے راخورے شوي دي ، هم دغه خلق دوزخيان دي

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٧﴾ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ

دوي به په دے كښې | هميشه وي | او په كومه ورځ چه موږ دوي راجمع كړو | ټول | بيا به موږ ووايو | هغو خلقو ته

په دے كښې به هميشه پراته وي ، او په كومه ورځ چه موږ دوي ټول رايو ځائے كړو ، نو مشركانو ته به ووايو

اَشْرَكُوْا مَكَانَكُمْ اَنْتُمْ وَشُرَكَآؤُكُمْ ۚ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ

چا چه شرك كړے وو | (ودريږئ) په خپل خپل ځائے تاسو | او ستاسو شريكان (معبودان) | بيا به موږ جدائي راولو | په مينځ د دوي كښې

چه تاسو او ستاسو (جوړ كړي) خدايان په خپل خپل ځائے ودريږئ نو بيا به د دوي ترمينځه جدائي راولو

وَقَالَ شُرَكَآؤُهُمْ مَّا كُنْتُمْ اِيَّانَا تَعْبُدُوْنَ ﴿٢٨﴾ فَكَفٰى بِاللّٰهِ

او وبه وائي | شريكان د دوي | چه تاسو زمونږ عبادت نه وو كړے | پس كافي دے | الله

او د هغوی (جوړ كړي) شريكان به ورته ووائي چه تاسو خو زمونږ عبادت (هيڅكله هم) نه كولو ـ او الله تعالیٰ

شَهِيدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَافِلِينَ ﴿٢٩﴾

گواه | په مینځ زمونږ | او په مینځ ستاسو کښې | مونږ وو | ستاسو له عبادت نه | بے خبره

زمونږ او ستاسو تر مینځه گواه کافی دے ۔ چه مونږ خو ستاسو د عبادت نه خبر (قدرله) هم نه وو ۔

هُنَالِكَ تَبْلُو كُلُّ نَفْسٍ مَّا أَسْلَفَتْ ۚ وَرُدُّوا إِلَى اللَّهِ

هلته به | بیا مومی | هر یو کس | هغه څه چه وړاندې ئے لیږلی وو | او دوی به واپس کړے شی | الله طرف ته

نو هلته به هر څوک د خپل عمل اندازه ولگوی چه د مخکښې نه وړاندې ئے لیږلے وو ، او دوی به خپل برحق

مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ ۖ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٣٠﴾ قُلْ

(چه) د دوی مالک دے | حقیقی | او ورکے به شی | له دوی نه | هغه خبرے چه دوی به د دروغو جوړولے | دوایه

مولی ته واپس کړے شی او کوم دروغ چه به دوی جوړول د دوی نه به ورک شی ۔ ورته ووایه

مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّن يَمْلِكُ السَّمْعَ

څوک | روزی درکوی تاسو ته | له آسمان نه | او زمکے (نه) | یا څوک دے | چه مالک دے | د غوږونو

چه څوک د آسمان او زمکے نه تاسو له رزق درکوی ، یا څوک دے چه ستاسو د غوږونو او

وَالْأَبْصَارَ وَمَن يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ

او د سترگو | او څوک دے | چه راوباسی | ژوندے | له مړی نه | او راوباسی | مړے

سترگو مالک دے ، او څوک دے چه د مړی نه ژوندی راوباسی ، او د ژوندی نه مړے

مِنَ الْحَيِّ وَمَن يُدَبِّرُ الْأَمْرَ ۚ فَسَيَقُولُونَ اللَّهُ ۚ فَقُلْ

له ژوندی نه | او څوک دے | چه انتظام کوی | د کار | پس ژر به وائی | الله | نو ووایه

راوباسی ، او څوک دے چه د هر کار انتظام کوی ، نو دوی به فوراً ووائی الله ، نو ته پوښتنه وکړه (بیا)

أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٣١﴾ فَذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ ۖ فَمَاذَا بَعْدَ

آیا تاسو نه ویریږی؟ | پس هم دا الله | ستاسو رب دے | رښتینے | پس څه دی | پس

تاسو (د هغه د نافرمانئ نه) ویریږئ نه؟ پس هم دا الله تعالیٰ ستاسو حقیقی رب دے ، نو د حق نه پس نو رڅه پاتے شول

الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ ۖ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ﴿٣٢﴾ كَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ

له حق نه | سوا د گمراهئ نه | پس کم خوا | تاسو روان یئ | دغه شان | رښتینی شوه | خبره

بغیر د گمراهئ نه ۔ آخر دا تاسو په کوم اړخ روان یئ ؟ هم دغسے ستاسو د رب خبره د

رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ فَسَقُوا أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٣﴾ قُلْ هَلْ

ستا د رب | په هغو خلقو چه | نافرمان دی | چه دوی | ایمان نه راوړی | ووایه | آیا

هغو فاسقانو په حقله پوره شوے ده چه دوی به ایمان نه راوړی ، ورته ووایه چه ستاسو په

مِن شُرَكَائِكُم مَّن يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ۚ قُلِ اللَّهُ

ستاسو په شریکانو کښې څوک شته دے؟ | چه په اول ځل پیدا کړی | مخلوق | بیا دوباره ژوندی کړی هغه | ووایه | الله

(جوړ کړی) شریکانو کښې څوک هم شته چه په اول ځل (یو څیز) پیدا کړی او بیائے سر دوباره ژوندی کړی ورته ووایه چه الله

يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴿٣٤﴾ قُلْ

په اول ځل پیدا کوی | مخلوق | بیا به ئې دوباره ژوندی کوی | نو کوم خوا | تاسو اړولی روان یئې | وُوایه

ئې په اول ځل هم پیدا کوی او بیا ئې دوباره هم نو دا تاسو کوم خوا اړولی روان یئې. ورته ووایه

هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ ؕ قُلِ اللّٰهُ

آیا (شته دے) | ستاسو له شریکانو نه | هغه څوک چه | لاره ښائی | حق طرف ته | دوایه | الله

چه آیا ستاسو په (جوړکړو) شریکانو کښے څوک هم شته چه د حق په لاره خلق روان کړی؟ ورته ووایه چه الله

يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ؕ اَفَمَنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ اَحَقُّ

لاره ښائی | حق طرف ته | نو آیا څوک چه | لاره ښائی | حق طرف ته | هغه زیات حق لری

د حق سمه لاره ښائی ، نو آیا څوک چه حقه لاره ښائی هغه زیات حق دار دے

اَنْ يُّتَّبَعَ اَمَّنْ لَّا يَهِدِّيْٓ اِلَّآ اَنْ يُّهْدٰى ۚ فَمَا لَكُمْ ۣ

چه تابعداری ئې وکړے شی | یا هغه څوک چه | لاره نه بیا مومی | مګر | دا چه هغه ته لاره وښودے شی | پس څه شوی دی په تاسو

چه د هغه تابعداری دِ وُشی او که هغه څوک چه پخپله هم لاره نه بیا مومی ترڅو چه ورته ونه ښودے شی. نو دا په تاسو څه

كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿٣٥﴾ وَمَا يَتَّبِعُ اَكْثَرُهُمْ اِلَّا ظَنًّا ؕ اِنَّ الظَّنَّ

څنګه | تاسو فیصله کوئ ؟ | او پیروی نه کوی | اکثر له دوی نه | مګر صرف د ګمان | بیشکه ګمان خو

شوی دی څنګه اړولے فیصلے کوئ ؟ او په دوی کښے اکثر خلق خو په خپلو ګمانونو پسے روان دی ، او بیشکه چه ګمان د

لَا يُغْنِيْ مِنَ الْحَقِّ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ﴿٣٦﴾

په کار نه راځی | د حق په مقابله کښے | هیڅ هم | بیشکه الله | پوهه دے | په هغه څه چه دوی ئې کوی

حق په مقابله کښے هیڅ فائده نه ورکوی ، بیشکه الله تعالیٰ ته د دوی د عملونو پوره پوره علم دے

وَمَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اَنْ يُّفْتَرٰى مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ

او نه دے | دا قرآن | (داسے) چه جوړ ئې کړی (بل څوک) | سوا د الله نه | او لیکن

او دا قرآن څه داسے (کتاب) نه دے چه د الله تعالیٰ نه سوا بل څوک دِ ئې په دروغه باندِ جوړ کړی ، بلکه دا

تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ

دا تصدیق دے | د هغو چه | له دے نه وړاندِ دی (کتابونه) | او تفصیل دے | (د ټولو) کتابونو | (څه) شک نشته

خو د هغو (کتابونو) تصدیق کوونکے دے چه له دے نه وړاندِ موجود دی او د ضروری حکمونو تفصیل دے ، په دِے کښے هیڅ

فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٣٧﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ

په دے کښے | (چه دا) د رب د عالمونو د طرف نه دے | یا | دوی وائی | چه هغه دا دروغ تړلے دے | دوایه

شک شبه نشته چه د ټول مخلوق د رب د طرف نه راغلے دے. آیا دا خلق وائی چه دا پیغمبر د ځانه جوړ کړے دے. ووایه

فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّثْلِهٖ وَادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ

نو راوړئ تاسو | یو سورت | په شان د دے | او راوبلئ | هغه څوک | چه رابللے شئ | د الله نه سوا

که (دا سے ده) نو (تاسو هم) د دِے په شان یو سورت راوړئ او د الله نه سوا چه کوم کوم رابللے شئ هغه راوبلئ

إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٣٨﴾ بَلْ كَذَّبُوْا بِمَا لَمْ يُحِيْطُوْا بِعِلْمِهٖ

کهٔ چرې يئ تاسو | رښتيني | بلکه | دروغ وګڼړلو دوی | هغه څيز چه احاطه نهٔ ده کړې دوی | په پوهه دَ هغې

کهٔ تاسو رښتيني يئ ـ تا. بلکه دوی هغه څيز (رېښتيا هيڅه) دروغ وګڼړلو کوم چه دَ دوی په علم کښې راګير نهٔ شو

وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيْلُهٗ ؕ كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

او لا نهٔ دې راغلې دوی ته | حقيقت دَ هغې | دغه شان | دروغ وګڼړلو | هغه خلقو چه | له دوی نه وړاندې وو

او دَ دې انجام ورته لا ښکاره شوې نهٔ دې ـ دغه شان دَ دې نه وړاندې خلقو هم (خدائي کتابونه) دروغ ګڼړلی وُو

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٣٩﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يُّؤْمِنُ

پس وګوره | څنګه | شو | انجام | دَ ظالمانو | او څوک له دوی نه | هغه څوک دي | چه يقين لري

نو وګوره چه دَ ظالمانو انجام څومره خراب وُختو ـ او څوک پکښې داسې دي چه په دې کتاب ايمان

بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهٖ ؕ وَرَبُّكَ اَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِيْنَ ﴿٤٠﴾

په دې | او څوک له دوی نه | هغه دی | چه يقين نهٔ لري | په دې | او ستا رب | زيات پوهه دې | په مفسدانو

راوړي او څوک پکښې داسې دي چه ايمان پرې نهٔ راوړي او ستا رب فساديان خلق ډير ښهٔ پيژني ـ

وَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ لِّيْ عَمَلِيْ وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ ۚ

او کهٔ چرې | دوی تا دروغژن ګڼړي | نو ووايه | ما دَ پاره | زما عمل دې | او تاسو دَ پاره | ستاسو عمل

او کهٔ دوی تا دروغژن ګڼړي، نو ورته ووايه چه ما له زما عمل بس دې او تاسو له ستاسو عملونه، تاسو

اَنْتُمْ بَرِيْٓـُٔوْنَ مِمَّآ اَعْمَلُ وَاَنَا بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٤١﴾

تاسو بری يئ | له هغه څهٔ نه | چه زهٔ کوم | او زهٔ | بری يم | له هغه څهٔ نه | چه تاسو کوئ

زما دَ عمل دَ ذمه وارئ نه بری يئ او زهٔ ستاسو دَ عملونو دَ ذمه وارئ نه بری يم

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ ؕ اَفَاَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ

او څنې له دوی نه | هغه څوک دي | چه غوږ نيسي | تا ته | پس آيا ته | آورولې شې | کڼړو ته؟

او په دوی کښې څنې داسې دي چه تا ته ئې غوږونه نيولي دي، نو آيا تهٔ کڼړو ته خبره آورولې شې؟

وَلَوْ كَانُوْا لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿٤٢﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْظُرُ اِلَيْكَ ؕ

اګر کهٔ | دوی عقل هم نهٔ لري | او څنې له دوی نه | هغه دي | چه ګوري | ستا طرف ته

او لا چه دوی دَ عقل نه هم کار نهٔ اخلي ـ او څوک پکښې داسې دي چه (په ښکاره) ستا طرف ته ګوري

اَفَاَنْتَ تَهْدِى الْعُمْىَ وَلَوْ كَانُوْا لَا يُبْصِرُوْنَ ﴿٤٣﴾ اِنَّ اللّٰهَ

نو آيا تهٔ | لار ښودلې شې | ړندو ته | اګر کهٔ | دوی نهٔ وينې | بيشکه الله

نو آيا تهٔ ړندو ته لار ښودلې شې او لا چه دوی کتلې هم نهٔ شي، بيشکه الله تعالیٰ په

لَا يَظْلِمُ النَّاسَ شَيْـًٔا وَّلٰكِنَّ النَّاسَ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٤٤﴾

ظلم نهٔ کوي | په خلقو باندې | هيڅ (هم) | ليکن | خلق (پخپله) | په خپل ځان باندې | ظلم کوي

بنيادمو پورې غونډې ظلم هم نهٔ کوي خو دا خلق پخپله په ځانونو باند ظلم کوي ـ

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَنْ لَّمْ يَلْبَثُوٓا اِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ

او په کوم ورځ چه | هغه دوی را جمع کړی | لکه چه دوی نه وو پاتې شوی | مګر | یو ساعت | د ورځې

او هغه ورځ ورته را یاده کړه چه الله به دوی راجمع کړی (نو دنیا ژوند به ورته دومره لږ ښکاري) لکه چه دوی په دنیا کښې هیڅ یو ساعت کړی پاتې

يَتَعَارَفُوْنَ بَيْنَهُمْ ۭ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَاۗءِ اللّٰهِ

دوی به پیژنی یو بل | په خپل مینځ کښې | بیشکه | تاوان وکړو | هغو کومو چه | دروغ وګڼړلو | ملاقات د الله

شوی وو او یو بل به هلته پیژنی هم - هغه خلقو ډیر تاوان وکړو چه د الله تعالیٰ ملاقات ئې دروغ وګڼړلو

وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ۝ وَاِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِيْ نَعِدُهُمْ

او نه وو دوی | په سمه لاره تلونکی | او که چرے | مونږ وښایو تا ته | ځنے هغه (عذاب) د کوم چه | مونږ دوی سره وعده کړو

او (په دنیا کښې هم) دوی هدایت موندونکی نه وو او که مونږ تا ته د هغې (عذاب) څه قدرے برخه وښایو د کوم چه دوی سره وعده

اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ اللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰي

یا | مونږ تا له وفات درکړو | نو هم زمونږ طرف ته | د دوی واپس راتلل دی | بیا | الله | ګواه دے | په هغه کارونو

کوو یا مونږ تا له (د هغې نه وړاندې) وفات درکړو نو دوی له هم زمونږ طرف ته واپس راتلل دی، بیا الله تعالیٰ په هغه کارونو ګواه

مَا يَفْعَلُوْنَ ۝ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلٌ ۚ فَاِذَا جَاۗءَ رَسُوْلُهُمْ قُضِيَ

کوم چه دوی کوی | او د هر یو امت | یو پیغمبر دے | نو هر کله چه | راشی | د دوی پیغمبر | نو فیصله کوے شی

دے کوم چه دوی کول - او هر یو امت ته یو پیغمبر راغلے دے، پس هر کله چه د دوی پیغمبر راشی، نو په انصاف سره د

بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا

د دوی ترمینځه | په انصاف سره | او په دوی | هیڅ ظلم نه شی کولے | او دوی وائی | کله (به وی) | دا

دوی په مینځ کښې فیصله کولے شی او په دوی هیڅ کله ظلم نه شی کولے او دوی وائی چه دا (د عذاب)

الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ

وعده | که چرے تاسو | رښتینی یئی | ووایه | زه نه یم مالک | د خپل ځان د پاره

وعده په آخر کله پوره کیږی که تاسو رښتینی یئی؟ ورته ووایه چه زه خو خپل ځان له هم د ګټے او

ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا اِلَّا مَا شَاۗءَ اللّٰهُ ۭ لِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ

د (څه) نقصان | او نه د نفع | مګر څه چه | الله وغواړی | هر یو امت د پاره | یو وخت مقرر دے

تاوان هیڅ اختیار نه لرم خو چه څومره الله تعالیٰ غواړی، هر یو امت له یوه نیټه مقرره ده

اِذَا جَاۗءَ اَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝

هر کله چه راشی | میعاد د دوی | نو نه | دوی وروستو پاتې کیدے شی | یو ساعت | او نه دوی وړاندې کیدے شی

نو هر کله چه د هغوی وخت پوره شی نو بیا نه خو یو ساعت وروستو پاتې کیدے شی او نه وړاندې کیدے شی

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُهٗ بَيَاتًا اَوْ نَهَارًا مَّاذَا

ووایه | وګورئ | که چرے | راشی په تاسو | عذاب د هغه | د شپے | یا د ورځے | نو هغه څه (شے) د

ورته ووایه چه دا خو ووایئ که د الله تعالیٰ عذاب در باندې د شپے یا د ورځے (ناګهانه) راشی نو په هغے کښې دا

يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٥٠﴾ اَثُمَّ اِذَا مَا وَقَعَ اٰمَنْتُمْ بِهٖ

دَکوم تادی چه به غواړی | مجرمان خلق | آیا بیا هرکله چه | هغه واقع شی | نو ایمان به راوړئ تاسو په هغه

کوم څیز دے چه دَ مجرمانو ورته تلوسه ده۔ نو آیا چه عذاب راشی نو هله به تاسو ایمان راوړئ

آٰلْئٰنَ وَقَدْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿٥١﴾ ثُمَّ قِيْلَ لِلَّذِيْنَ

آیا اوس (رښتا سو یقین راغلے) | حال دا دے چه تاسو | دا | په تندئ غوښتلو | بیا به ووئیلے شی | هغو خلقو ته

هغه وخت (به ووئیلے شی) چه اوس (تاسو ایمان راوړئ)؟ او دے ته دهاندې خو تاسو دَ په حقله تادی کوله ، بیا به ظالمانو

ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ ۚ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا بِمَا

کوم چه ظلم وکړو | چه وڅکئ | عذاب | دَ همیشه | تاسو له به بدله نهٔ شی درکولے | مګر دَ هغه څه

ته ووئیلے شی چه دَ تل عمری عذاب مزه څکئ ، تاسو ته به دَ خپل عمل نه سوا نوره

كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ﴿٥٢﴾ وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ اَحَقٌّ هُوَ ۭ قُلْ اِيْ

چه تاسو به کول ۔ | او دوی پښتوس کوی له تانه | آیا رښتیا ده | دا (وعده) | ووایه | هو!

څهٔ بدله درکیدے شی؟ او دوی له تا نه پښتوس کوی چه آیا دا خبره رښتینې ده ۔ ووایه چه هو!

وَرَبِّيْٓ اِنَّهٗ لَحَقٌّ ړ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿٥٣﴾ وَلَوْ اَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ

قسم دے په رب زما | بیشکه دا | حقه ده | او نهٔ یئ تاسو | عاجزه کوونکی | او که چرے وی | دَ هر نفس دَ پاره

په خپل رب م دِ قسم وی چه دا بالکل حقه ده او تاسو (الله) دَ دے دَ راوستو نه عاجزه کولے نهٔ شی، او که (دَ قیامت په

ظَلَمَتْ مَا فِی الْاَرْضِ لَافْتَدَتْ بِهٖ ۭ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ

کوم چه ظلم وکړو | څهٔ چه په زمکه کښے دی | نو خامخا به په فدیه کښے ورکړی دا | او دوی به پټوی | پښیمانی

ورځ) یو ظالم سړه دَ ټولے دُنیا ټول مال موجود وی نو هم به ئے دَ ځان په فدیه کښے ورکړی او هرکله چه عذاب

لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ۚ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَهُمْ

هرکله چه | دوی ووینی | عذاب | او فیصله به وکړے شی | دَ دوی په مینځ کښے | په انصاف سره | او په دوی

ووینی نو پټ په زړهٔ کښے به پښیمانه شی او دَ هغوی ترمینځهٔ به په انصاف فیصله وکړے شی ، او په دوی

لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿٥٤﴾ اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ

به ظلم نهٔ شی کولے | واورئ! | بیشکه دَ الله دی | څهٔ چه | په آسمانونو | او زمکه کښے دی

به هیڅ زیاتے نهٔ شی کولے۔ یاد لرئ هر څهٔ چه په آسمانونو او زمکه کښے دی هغه ټول دَ الله تعالیٰ دی

اَلَآ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٥٥﴾

واورئ! | بیشکه | وعده | دَ الله | رښتیا (ده) | لیکن | اکثر دَ دوی | نهٔ پوهیږی۔

یاد ساتئ چه دَ الله تعالیٰ وعده رښتینې ده ، خو اکثر خلق نهٔ پوهیږی۔

هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٥٦﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ

هغه ژوندی کوی | او مړهٔ کوی | او هم دَ دهٔ طرف ته | به تاسو واپس کیږئ | اے خلقو!

هم هغه ژوندی ورکوی او هم هغه مرګ ورکوی او هم دَ هغهٔ طرف ته تاسو له واپس تلل دی۔ اے خلقو

وقف النبي صلى الله عليه وسلم ٥ ع ١٣ ١٠

قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُوْرِ

راغلی دے تاسو ته | نصیحت | ستاسو دَ رب طرف نه | او شفا | دَ هغه څه | چه په سینو کښې دی

تاسو ته دَ خپل رب دَ طرف نه نصیحت راغلے دے ، او دَ سینو دَ بیمارو علاج دے

وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٥٧﴾ قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ

او هدایت | او رحمت | مؤمنانو دَ پاره | ووایه | په فضل دَ الله | او په رحمت دَ ده

او ځوک نے چه ومنی دَ هغوی په حقله هدایت او رحمت دے (اے پیغمبره!) ووایه (چه دا قرآن فضل او رحمت دے) نو دَ الله په

فَبِذٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوْا ۭ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ﴿٥٨﴾ قُلْ اَرَءَيْتُمْ

پس په دے | پکار دی چه خوشحاله شی دوی | دا ډیره ښه ده | له هغه څه نه | چه دوی ئے جمع کوی | ووایه | آیا ولیدل تاسو

فضل او رحمت باندے دوی له خوشحالیدل پکار دی دا دَ هغه ټولو څیزو نه بهتر دی کوم چه تاسو جمع کوئ دوی نه ووایه

مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ مِّنْهُ حَرَامًا

هغه څه چه نازل کړو | الله | تاسو دَ پاره | رزق | بیا جوړ کړو تاسو | په دے کښې | (څه) حرام

دا خو ووایئ چه الله تعالیٰ تاسو له کوم رزق رالیږلے دے، نو تاسو (دَ ځان نه) په هغے کښې څه حرام او څه

وَّحَلٰلًا ۭ قُلْ ءٰٓاللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَى اللّٰهِ تَفْتَرُوْنَ ﴿٥٩﴾

او (څه) حلال | ووایه | آیا الله | حکم کړے دے | تاسو ته | یا | په الله باندے | تاسو دروغ تړئ

حلال کړو، دوی نه تپوس وکړه چه آیا الله تعالیٰ تاسو ته دَ دے اجازت درکړے دے یا تاسو په الله تعالیٰ باندے دروغ تړئ.

وَمَا ظَنُّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ

او څه گمان دے | دَ هغو خلقو | چه تړی | په الله باندے | دروغ | دَ قیامت دَ ورځے (په حقله)

او هغه خلق چه په الله تعالیٰ باندے دروغ تړی، دَ هغوئ دَ قیامت دَ ورځے په حقله څه گمان دے؟

اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿٦٠﴾

بیشکه الله | دَ لوئے فضل خاوند دے | په خلقو | او لیکن | ډیر له دوی نه | شکر نه کوی.

بیشکه الله تعالیٰ په خلقو باندے ډیر مهربان دے خو اکثر خلق ناشکره دی -

وَمَا تَكُوْنُ فِيْ شَاْنٍ وَّمَا تَتْلُوْا مِنْهُ مِنْ قُرْاٰنٍ وَّلَا تَعْمَلُوْنَ

او نه | یئے ته | په هیڅ حال کښې | او نه لولے ته | څه | له قرآن نه | او نه کوئ تاسو

او (اے پیغمبره!) ته په هر حال کښے چه یئے او په هغه (حال) کښے (هم) چه قرآن لولے او (اے خلقو!) تاسو هم

مِنْ عَمَلٍ اِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُوْدًا اِذْ تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ۭ وَمَا

څه عمل | مګر یو مونږ | په تاسو باندے | خبردار | هر کله چه تاسو مشغولیږئ | په هغے کښې | او نه

چه څه کار کوئ نو په هر حال کښے مونږ تاسو وینو کورو څه وخت چه تاسو په هغه کار کښے اخته یئ، او ستا

يَعْزُبُ عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ

پټیږی | ستا دَ رب نه | په اندازه دَ یوے ذرے | په زمکه کښے | او نه په آسمان کښے

دَ رب نه پوتے قدر له څیز هم پټ پاتے کیدے نه شی په زمکه کښے او نه په آسمان کښے

وَلَآ اَصۡغَرَ مِنۡ ذٰلِكَ وَلَآ اَكۡبَرَ اِلَّا فِىۡ كِتٰبٍ مُّبِيۡنٍ ﴿٦١﴾ اَلَآ

اونهٔ | ډیروړوکے | له دے نه | او نهٔ | ډیر لوئے | مګر | (هغه دے) په کتاب واضحه کښے | باد ساته

اونهٔ دَ هغے پوټي نه ورکوټے او نهٔ لوئے دانګول په یو واضحه کتاب (لوح محفوظ) کښے درج پرانهٔ دی. واؤرئ

اِنَّ اَوۡلِيَآءَ اللّٰهِ لَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُوۡنَ ﴿٦٢﴾ الَّذِيۡنَ

بیشکه | دوستان دَ الله | نشته دے (څه) ویره | په دوی | او نه به دوی | غمژن وی | هغو کسانو چه

چه دَ الله تعالیٰ په دوستانو نهٔ ویره راځی او نهٔ چرے غمژن کیږی ـــــ داهغه کسان دی

اٰمَنُوۡا وَكَانُوۡا يَتَّقُوۡنَ ﴿٦٣﴾ لَهُمُ الۡبُشۡرٰى فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا

ایمان ئے راوړو | او دوی | پرهیزګاری دکړه | دوی له | زیرے دے | په ژوندون دَ دنیا کښے

چه ایمان ئے راوړو او پرهیزګاری ئے اختیار کړه، دَ دوی دَ پاره دَ دُنیا په ژوند کښے او په آخرت کښے

وَفِى الۡاٰخِرَةِ ؕ لَا تَبۡدِيۡلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الۡفَوۡزُ

او په آخرت کښے | نشته دے څهٔ بدلون | دَ الله خبرو له | هم دا دهٔ | کامیابي

خوشخبری ده، دَ الله تعالیٰ خبرے نهٔ بدلیږی، هم دغه لویه کامیابي

الۡعَظِيۡمُ ﴿٦٤﴾ وَلَا يَحۡزُنۡكَ قَوۡلُهُمۡ ۘ اِنَّ الۡعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيۡعًا ؕ هُوَ

لویه | او غمژن دِ نهٔ کړی تا | خبرهٔ دَ دوی | بیشکه | عزت | الله لره دے | ټول | هم دے دے

ده، او (اے پیغمبره!) دَ دوی (کافرو) خبرے دِ تا نهٔ غمژن کوی بیشکه ټوله غلبه الله تعالیٰ دَ پاره ده، هغه

السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ ﴿٦٥﴾ اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَنۡ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنۡ

آورېدونکے | پوهه | یا د ساتئ | بیشکه | دَ الله دی | څهٔ چه | په آسمانونو کښے | او څهٔ چه

هر څهٔ آورې ډیر ښهٔ پوهه دے. واؤرئ چه دانګول دَ الله تعالیٰ دی هر څهٔ چه په آسمانونو او په زمکه

فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِيۡنَ يَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ شُرَكَآءَ ؕ

په زمکه کښے دی | او پیروی نهٔ کوی | هغه خلق چه | آوازونه کوی | الله نه سوا | دَ شریکانو ؟

کښے موجود دی. او کوم خلق چه دَ الله تعالیٰ نه سوا نورو (دَ ځان نه جوړ کړو) شریکانو ته آوازونه کوی

اِنۡ يَّتَّبِعُوۡنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنۡ هُمۡ اِلَّا يَخۡرُصُوۡنَ ﴿٦٦﴾ هُوَ

نهٔ | کوی پیروی دوی | مګر | دَ وهم | او نهٔ دی دوی | مګر | دروغژن | هم دے دے

(خبر یئ چه) هغوی په څهٔ پسے روان دی هغوی محض په ګمان پسے روان دی او صرف اٹکل ازئے لګوی، الله تعالیٰ

الَّذِىۡ جَعَلَ لَـكُمُ الَّيۡلَ لِتَسۡكُنُوۡا فِيۡهِ وَالنَّهَارَ مُبۡصِرًا ؕ اِنَّ

چا چه | جوړه کړه | تاسو دَ پاره | شپه | چه تاسو آرام وکړئ | په هغے کښے | او ورځ | روښانه | بیشکه

هغه ذات دے چه شپه ئے درله جوړه کړے ده چه آرام پکښے وکړئ او ورځ ئے (روښانه) جوړه کړے ده چه لیدل پکښے کولے

فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّسۡمَعُوۡنَ ﴿٦٧﴾ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا

په دے کښے | نخښے دی | هغه قوم دَ پاره | چه آوری | دوی وائی | نیولے دے الله | ځوئے

شئ، بیشکه چه په دے کښے دَ (پیغمبر دَ خبرو) آورېدونکو دَ پاره دلیلونه موجود دی دوی وائی چه الله ځان له ځوئے نیولے دے

وقف لازم

سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ الْغَنِیُّ ؕ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ

هغه پاک دے | هغه بے نیازه دے | دَهغه دی | څه چه | په آسمانونو کښے | او څه چه | په زمکه کښے دی

الله تعالیٰ پاک دے، هغه غنی دے هر څۀ چه په آسمانونو او په زمکه کښے دی ټول دَ هغهٔ (ملکیت) دی

اِنْ عِنْدَكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍۭ بِهٰذَا ؕ اَتَقُوْلُوْنَ عَلَی اللّٰهِ

نشته دے | تاسو سره | هیڅ دلیل | دَ دے | آیا وایئ تاسو | په الله بانډے

تاسو سره (دَ شرک) په دِے خبره هیڅ دلیل هم نشته، نو آیا تاسو په الله تعالیٰ بانډِ داسے خبرے

مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۸﴾ قُلْ اِنَّ الَّذِیْنَ یَفْتَرُوْنَ عَلَی اللّٰهِ الْکَذِبَ

هغه څۀ چه نۀ پوهیږئ | ووایه | بیشکه کوم خلق چه | تړی | په الله بانډِ | دروغ

تړئ چه خپله تاسو ته خبر هم نۀ یئ۔ ووایه چه څوک په الله تعالیٰ بانډِ دروغ تړی یقیناً هغوئ

لَا یُفْلِحُوْنَ ﴿۶۹﴾ ؕ مَتَاعٌ فِی الدُّنْیَا ثُمَّ اِلَیْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ

هغوی به خلاصے نۀ بیا مومی | لږه فائده ده | په دنیا کښے | بیا | زمونږ طرف ته دی | واپس راتلل دَ دوی | بیا

خلاصیدے نۀ شی۔ په دُنیا کښے لږ ساعت مزے دِ وکړئ، بیا هم زمونږ طرف ته دَ دوی واپسی ده، نو

نُذِیْقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِیْدَ بِمَا كَانُوْا یَكْفُرُوْنَ ﴿۷۰﴾ وَاتْلُ

مونږ به وڅکوو دوی ته | عذاب | سخت | په وجه دَ هغے | چه دوی به کفر کولو | او واوروه

بیا به مونږ دوی ته دَ دوی دَ کفر او انکار په وجه دَ سخت عذاب مزه وڅکوو (اے پیغمبره!) دوی

عَلَیْهِمْ نَبَاَ نُوْحٍ ۘ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ یٰقَوْمِ اِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَیْكُمْ

دوی ته | خبر | دَ نوح | هر کله چه ووئیل دهٔ | خپل قوم ته | اے زما قومه! | که وی گران | په تاسو

ته دَ نوح (علیه السلام) حالات واوروه، هر کله چه دهٔ خپل قوم ته ووئیل چه اے زما قومه! که په تاسو بانډِ دلته

مَّقَامِیْ وَتَذْكِیْرِیْ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ فَعَلَی اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ فَاَجْمِعُوْۤا

زما اوسیدل | او زما نصیحت کول | په آیتونو دَ الله | نو په الله بانډِ | ما توکل کړے دے | پس یو ځائے کړئ

زما استوګنه او دَ الله دَ حکمونو په ذریعه زما نصیحت ګران وی، نو زما په خپل الله بانډِ توکل دے نو تاسو دَ خپلو

اَمْرَكُمْ وَشُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ لَا یَكُنْ اَمْرُكُمْ عَلَیْكُمْ غُمَّةً

خپله معامله | دَ خپلو شریکانو سره | بیا | نۀ دِ وی | ستاسو معامله | په تاسو بانډِ | پټه

(جوړه کړه و) شریکانو سره خپله فیصله وکړئ (چه) بیا تاسو ته په خپله خبره بانډِ څۀ شک پاتے نۀ شی

ثُمَّ اقْضُوْۤا اِلَیَّ وَلَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۷۱﴾ فَاِنْ تَوَلَّیْتُمْ فَمَا سَاَلْتُكُمْ

بیا | وکړئ | ماسره (څۀ چه کوئ) | او ماله مهلت مۀ راکوئ | پس که چرے | تاسو مخ واړولو | نو ما نۀ دے غوښتے تاسو نه

بیا ماسره خپله خوښی وکړئ او هیڅ مهلت مۀ راکوئ، بیا که تاسو (زما دَ نصیحت نه) مخ واړوونو (زۀ څۀ پروا

مِّنْ اَجْرٍ ؕ اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلَی اللّٰهِ ۙ وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ

څۀ اجر | نشته دے | زما اجر | مګر | په الله | او ما ته حکم شوے دے | چه زۀ شم

نۀ کوم) ما خو تاسو نه څۀ معاوضه نۀ ده غوښتے زما معاوضه خو صرف دَ الله په ذمه ده او ما ته حکم شوے دے چه زۀ

ع ۱۰ / ۱۲ وقف لازم

مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٧٢﴾ فَكَذَّبُوهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَمَنْ مَّعَهُ

له فرمانبردارو نه | پس دوی دروغ وګڼلو دے | نو خلاصے ورکړو مونږ دهٔ ته | او هغه چا ته چه | دَ دهٔ سره وو

په فرمانبردارو کښے شامل شم. بیا دوی هغه دروغژن وګڼلو بیا مونږ هغه او کوم چه هغهٔ سره په کشتئ کښے

فِي الْفُلْكِ وَجَعَلْنَاهُمْ خَلَائِفَ وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا

په کشتئ کښے | او جوړ کړل مونږ دوی | جانشين | او غرق کړل مونږ | هغه خلق چه | دروغ ئے ګڼلی وو

وو بچ کړل او دوی مو (په زمکه کښے) جانشين جوړ کړل او کومو خلقو چه زمونږ آيتونه دروغ ګڼلی وو

بِآيَاتِنَا ۖ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِينَ ﴿٧٣﴾ ثُمَّ بَعَثْنَا

زمونږ آيتونه | پس وګوره | چه څنګه شو | انجام | دَ ويرولو شوو | بيا راوليږل مونږ

هغه مو غرق کړل پس وګورئ چه دَ هغو خلقو څهٔ انجام شو، کوم چه ويرولے شوی وو. بيا مو دَ هغهٔ نه

مِنْ بَعْدِهِ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ فَجَاءُوهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا كَانُوا

پس له دهٔ نه | پيغمبران | دَ دوی دَ قوم طرف ته | پس دوی راوړے هغوی ته | روښانه نخښے | پس دوی دا نهٔ وو

پس نور پيغمبران خپلو خپلو قومونو ته وليږل ، نو هغوی ورته ښکاره دليلونه يوړل خو دا وُنه شوه

لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا بِهِ مِنْ قَبْلُ ۚ كَذَٰلِكَ نَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِ

چه ايمان ئے راوړے وے | په هغه څه | چه دوی دروغ ګڼلی وو هغه | وړاندې | دغه شان | مونږ مهر لګوو | په زړونو

چه په هغے ئے ايمان راوړے وے کوم چه ئے وړاندې دروغ ګڼلی وو، مونږ دغه شان دَ سرکښانو په زړونو باندې

الْمُعْتَدِينَ ﴿٧٤﴾ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُوسَىٰ وَهَارُونَ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ

دَ حد نه دَ تيرېدونکو | بيا ئے ليږل مونږ | پس له دوی نه | موسیٰ ؑ | او هارون ؑ | طرف دَ فرعون

تاپے لګوو، بيا مونږ دَ دے (پيغمبرانو) نه پس موسیٰ او هارون عليهما السلام دواړه فرعون او دَ هغهٔ

وَمَلَئِهِ بِآيَاتِنَا فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا مُجْرِمِينَ ﴿٧٥﴾

او دَ دهٔ دَ سردارانو ته | په خپلو نخښو سره | نو دوی غرور وکړو | او دوی وو | قوم | ګناهګاران

دلبار يانو ته دَ خپلو نخښو سره وليږل خو هغوی لوئی وکړه او دغه خلق وو مجرمان -

فَلَمَّا جَاءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا إِنَّ هَٰذَا

بيا چه هر کله | راغے دوی ته | حق | زمونږ له طرف نه | دوی ووئيل | بيشکه | دا (خو)

نو هر کله چه ورته زمونږ دَ طرف نه حق ورغے ، تو هغوی ووئيل چه دا خو ښکاره

لَسِحْرٌ مُبِينٌ ﴿٧٦﴾ قَالَ مُوسَىٰ أَتَقُولُونَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَكُمْ ۖ

جادو دے | ښکاره | ووئيل | موسیٰ | آيا تاسو وايئ دا | دَ حق په باره | هر کله چه هغه راغے تاسو ته

جادو دے . موسیٰ عليه السلام ووئيل چه آيا تاسو دَ حق په حقله داوايئ هر کله چه هغه تاسو ته راغے

أَسِحْرٌ هَٰذَا وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُونَ ﴿٧٧﴾ قَالُوا أَجِئْتَنَا

آيا دا جادو دے ؟ | او نهٔ کامياببږی | جادوګر | دوی ووئيل | آيا تهٔ راغلے يې مونږ ته

دے چه دا جادو دے ؟ حال دا دے چه جادوګر هيڅکله نهٔ کامياببږی. هغوی ووئيل چه آيا تهٔ مونږ

لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا وَتَكُوْنَ لَكُمَا

چه ته دواړه مونږ | له هغه څه نه | چه موندلى دى مونږ | په هغې | خپل پلارنيكۀ | او وى | تاسو دواړو له

ته د دې دپاره راغلى يئ چه ته مونږ د هغې لارې نه خواوړې په کومه چه مونږ خپل پلارنيكۀ موندلى دى، او چه د ملک

الْكِبْرِيَآءُ فِى الْاَرْضِ ؕ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِيْنَ ۝ وَقَالَ

سردارى | په زمكه كښې | او نۀ يو مونږ | تاسو دواړه | منونكى | او ووئيل

مشرى ستاسو د دواړو په لاس راشى، او مونږ خو تاسو دواړه هيچرې نۀ منو. او فرعون (خپلو سړو

فِرْعَوْنُ ائْتُوْنِىْ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ۝ فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ

فرعون | راولئ ما ته | هر جادوگر | هوښيار | پس هر كله چه راغلل | جادوگران

ته) ووئيل چه ماله ټول ماهر جادوګر راولئ. نو هر كله چه جادوګر راغلل نو

قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰٓى اَلْقُوْا مَآ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ ۝ فَلَمَّآ اَلْقَوْا

ووئيل | دوى ته | موسىٰ | وغورزوئ | هغه څۀ چه تاسو ئې غورزونكى يئ | بيا هر كله چه | دوى وغورزول

موسىٰ عليه السلام ورته ووئيل څۀ چه اچول غواړئ هغه راميدان ته كړئ. بيا هر كله چه هغوى (خپلې

قَالَ مُوْسٰى مَا جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَيُبْطِلُهٗ ؕ

نو ووئيل | موسىٰ | څۀ چه تاسو راوړى دى | (هغه) جادو دے | بيشكه الله | به هغه اوس باطله (بېكاره) كړى

اوكوټلې) وغورزول نو موسىٰ عليه السلام ووئيل چه تاسو څۀ راوړى دى هغه جادو دے. الله تعالىٰ به دا ډېر زر فنا كړى

اِنَّ اللّٰهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِيْنَ ۝ وَيُحِقُّ اللّٰهُ الْحَقَّ

بيشكه الله | نه سموى | كار | د مفسدانو | او حق به (ثابت) كړى | الله | حق

بيشكه الله تعالىٰ د فساديانو كار له سمون نۀ ور كوى. او الله تعالىٰ د خپلې وعدې مطابق حق

بِكَلِمٰتِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ۝ فَمَآ اٰمَنَ لِمُوْسٰٓى اِلَّا

په خپل حكم سره | اګر كه | نۀ ئې خوښوى | مجرمان خلق | پس ايمان راؤنۀ ړو | په موسىٰ | مګر

رښتينې كوى اګر كه د مجرمانو ناخوښه وى. پس د فرعون او د دۀ د سردارانو د ډېرې

ذُرِّيَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهِمْ اَنْ

يو ے ډلے | له قوم د دۀ نه | په وېره | له فرعون نه | او له سردارانو د دوى نه | چه

نه د موسىٰ عليه السلام د قوم د يو څو كسانو نه سوا چا هم په دۀ ايمان رانۀ وړو چه چرته په مصيبت

يَّفْتِنَهُمْ ؕ وَاِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِى الْاَرْضِ ۚ وَاِنَّهٗ

عذاب به كړى دوى | او بيشكه | فرعون (وو) | زور آور | په زمكه كښې | او بيشكه دے (وو)

كښې ئې اخته نۀ كړى. او بيشكه چه فرعون په ملک كښې ډېر زور آور وو، او هغۀ به ډېر

لَمِنَ الْمُسْرِفِيْنَ ۝ وَقَالَ مُوْسٰى يٰقَوْمِ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ

له حد نه تيرېدونكے | او ووئيل | موسىٰ | اے زما قومه! | كۀ چرې تاسو | ايمان راوړے دى

زياتے كولو. او موسىٰ عليه السلام ووئيل چه اے زما قومه! كۀ تاسو په (رښتيا) په خدائے

بِاللّٰهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّسْلِمِيْنَ ﴿۸۴﴾ فَقَالُوْا عَلَى اللّٰهِ

په الله | نو هم په هغهٔ باندې | توکل کوئ | که چرې یئ تاسو | فرمانبردار | پس دوی وویل | په الله باندې

ایمان راوړے وی نو په هغهٔ باندې تکیه وساتئ که تاسو فرمانبردار یئ۔ نو هغوی جواب ورکړو چه زمونږ په

تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۸۵﴾ وَنَجِّنَا

توکل وکړو مونږ | اے زمونږه ربه! | مهٔ جوړوه مونږ | فتنه | دَ پاره دَ قوم | دَ ظالمانو | او خلاصے راکړه مونږ ته

الله تعالیٰ توکل دے اے زمونږ ربه! مونږه دَ ظالمانو په لاس کښے فتنه مهٔ ګرځوه او په خپل رحمت مونږ دَ

بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۸۶﴾ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰى

په خپل رحمت سره | له قوم دَ کافرانو نه | او مونږ وحی وکړه | موسیٰ ته

کافرانو دَ لاسه نه بچ کړه۔ او مونږ موسیٰ او دَ هغهٔ ورور ته وحی

وَاَخِيْهِ اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوْتًا وَّاجْعَلُوْا

او دَ دهٔ ورور ته | چه | تاسو جوړ کړئ | دَ خپل قوم دَ پاره | په مصر کښے | کورونه | او جوړ کړئ

وکړه، تاسو دَ خپل قوم دَ پاره په مصر کښے کورونه قائم وساتئ، او خپل کورونه

بُيُوْتَكُمْ قِبْلَةً وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۸۷﴾ وَقَالَ

خپل کورونه | دَ عبادت ځایونه | او قائم کړئ | مونځ | او زیرے ورکړه | مؤمنانو ته | او وویل

دَ مونځ ځایونه کړئ، او دَ مونځ پابندی ساتئ او ته مؤمنانو له زیرے ورکړه او موسیٰ علیه السلام

مُوْسٰى رَبَّنَآ اِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِيْنَةً وَّ

موسیٰ | اے زمونږه ربه! | بیشکه تا ورکړے دے | فرعون | او دَ دهٔ سردارانو ته | زینت | او

وویل اے زمونږه ربه! تا فرعون له او دَ هغهٔ سردارانو له دَ ښائست سامانونه او ډیر مالونه

اَمْوَالًا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ رَبَّنَا لِيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِكَ ۚ

دولت | په ژوند دَ دنیا کښے | اے زمونږ ربه! | چه دوی ګمراه کړی (خلق) | ستا دَ لارے نه

په دے دُنیا ورکړی دی (نتیجه ئے دا چه) اے زمونږ ربه! هغوی ستا دَ لارے نه خلق ګمراه کوی،

رَبَّنَا اطْمِسْ عَلٰٓى اَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ

اے زمونږ ربه! | فنا کړه | مالونه دَ دوی | او سخت کړه | زړونه دَ دوی

اے زمونږ ربه! دَ دوی مال او دولت برباد کړه، او دَ دوی زړونه سخت کړه،

فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿۸۸﴾ قَالَ قَدْ

چه دوی ایمان رانهٔ وړی | تر دے چه | دوی وګوری | عذاب | دردناک | الله وفرمائیل | یقیناً

چه هیچرے ایمان رانهٔ وړی، تر دے چه دردناک عذاب ووینی۔ الله تعالیٰ ورته وفرمائیل

اُجِيْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا فَاسْتَقِيْمَا وَلَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِيْلَ الَّذِيْنَ

قبوله کړے شوه | ستاسو دُعا | پس تاسو دواړه ثابت قدم وسیږئ | او تابعداری مهٔ کوئ | دَ لارے | دَ هغو خلقو

چه ستاسو دُعا قبوله شوه نو په خپله لاره قائم وُسیږئ او دَ هغه چا په لار مهٔ ځئ چه

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۹﴾ وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتْبَعَهُمْ

چه علم نه لری | او پورے ویستل موږ | بنی اسرائیل | د دریاب نه | پس دوی پسے شو

نۀ پوهیږی ۔ او موږ بنی اسرائیل د سمندر نه پورے ویستل ، نو فرعون او د هغه

فِرْعَوْنُ وَجُنُوْدُهٗ بَغْيًا وَّعَدْوًا ؕ حَتّٰٓى اِذَآ اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ ۙ

فرعون | او د هغهٔ لښکرے | په ظلم | او زیاتئ سره | تر دے چه | هر کله | دے په ډوبیدو شو

لښکرو نه هم د ظلم او د زیاتی په غرض ورپسے روان شول ، تر دے چه هغه په ډوبیدو شو

قَالَ اٰمَنْتُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِيْٓ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْٓا

نو وے وئیل | ما یقین وکړو | چه نشته دے | (څوک) معبود | سوا | د هغه ذات نه | چه ایمان راوړے دے په هغه | بنی

وے وئیل چه زهٔ ایمان راوړم چه د هغه ذات نه سوا بل معبود نشته په کوم چه بنی اسرائیلو ایمان

اِسْرَآءِيْلَ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۹۰﴾ آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ

اسرائیلو | او زهٔ | له فرمانبردارو نه یم | آیا اوس (ایمان راوړے) | حال دا چه تا نافرمانی کړے ده

راوړے دے او زهٔ په مسلمانانو کښے شاملیږم ۔ (وے فرمائیل) اوس (ایمان راوړے)؟ حال دا دے چه له

قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۹۱﴾ فَالْيَوْمَ نُنَجِّيْكَ بِبَدَنِكَ

وړاندے له دے نه | او ته وے | له فساد کوونکو نه | پس نن به | موږ نجات درکړو | ستا بدن ته

دے نه وړاندے تا نافرمانی کړے ده او ته له فساد کوونکو نه یے ۔ پس نن به موږ ستا بدن بچ کړو

لِتَكُوْنَ لِمَنْ خَلْفَكَ اٰيَةً ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ

چه ته شے | هغه چا د پاره | چه تا نه وروستو راتلونکی دی | نخښه | او بیشکه | ډیر | له خلقو نه

چه ته د راتلونکو نسلونو د پاره (د عبرت) نخښه شے او واقعی ډیر خلق زموږ د نخښو نه

عَنْ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُوْنَ ﴿۹۲﴾ وَلَقَدْ بَوَّاْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ مُبَوَّاَ صِدْقٍ

زموږ له آیتونو نه | بے خبره دی | او بیشکه | ځائے ورکړو موږ | بنی اسرائیلو ته | ځائے ښه

بے خبره دی ۔ او بیشکه موږ بنی اسرائیلو له په زمکه ډیر ښهٔ ځائے ورکړو

وَّرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۚ فَمَا اخْتَلَفُوْا حَتّٰى جَآءَهُمُ

او موږ روزی ورکړه دوی ته | له پاکیزه څیزونو | پس دوی اختلاف ونهٔ کړو | تر دے چه | راغے دوی ته

او موږ دوی له پاکیزه څیزونو نه رزق ورکړو ، نو دوی (یو بل سره) اختلاف ونهٔ کړو ، تر دے چه دوی ته

الْعِلْمُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ

علم | بیشکه ستا رب به | فیصله وکړی | د دوی ترمینځه | په ورځ د قیامت | په هغه خبره کښے | په کومه چه دوی

(د حق) علم راغے ۔ بیشکه ستا رب به د قیامت په ورځ د دوی ترمینځه فیصله وکړی په هغه خبرو کښے په کومو

يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۹۳﴾ فَاِنْ كُنْتَ فِيْ شَكٍّ مِّمَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ

اختلاف کولو | پس که چرے ته یے | په شک کښے | له هغه (کتاب) نه | چه نازل کړو موږ | ستا طرف ته

کښے چه دوی اختلاف کولو ۔ که چرے تا ته په هغه خبرو کښے کوم چه موږ په تا نازلے کړی دی څهٔ شک وی

فَسْـَٔلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَقَدْ جَآءَكَ الْحَقُّ

نو پوښتنه وکړه | دَ هغه خلقو نه | چه لولی | کتاب | وړاندې له تا نه | بیشکه راغلے دے تا ته | حق (قرآن)

دَ هغه چا نه پوښتنه وکړه چه له تا نه وړاندې کتابونه ئے لوستل ، بیشکه تا ته دَ خپل پروردګار دَ طرف نه

مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿٩٤﴾ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الَّذِيْنَ

ستا دَ رب له طرفه نه | پس مهٔ کیږه ته | له شک کوونکو نه | او مهٔ کیږه ته | له هغو خلقو نه

حق راغلے دے ، نو هرګز په شکمنو خلقو کښے مهٔ شاملیږه او په هغه خلقو کښے هم ځان مهٔ کړه

كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَتَكُوْنَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٩٥﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

چه دروغ ئے وګڼل | دَ الله آیتونه | پس نهٔ به شے | له نقصان موندونکو نه | بیشکه | هغه خلق چه

چه دَ الله تعالی نخښے دروغ ګڼی ، ګنی تاوانی به شے . بیشکه دَ چا په حقله چه ستا

حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٩٦﴾ وَلَوْ جَآءَتْهُمْ

ثابت شو | په هغوی باندې | حکم | ستا دَ رب | ایمان نهٔ راوړی | او که څهٔ | راشی دوی ته

دَ رب خبره ثابته شوے ده هغوی ایمان نهٔ راوړی . اګر که هر قسم نخښے ورته

كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿٩٧﴾ فَلَوْلَا

ټولے معجزے | تر دے چه | دوی وګوری | عذاب | دردناک | پس ولے نهٔ

راشی ، ترڅو چه دردناک عذاب ونهٔ وینی . نو داسے (مثال نشته) چه یو

كَانَتْ قَرْيَةٌ اٰمَنَتْ فَنَفَعَهَآ اِيْمَانُهَآ اِلَّا قَوْمَ

شو | بو کلے | چه ایمان ئے راوړے وے | نو نفع ئے رسولے وے ته | دَ دے ایمان | سوا | دَ قوم

کلی دَ عذاب لیدو نه پس ایمان راوړے وی او خپل ایمان ورته نفع ورکړی وی بغیر دَ یونس علیه السلام دَ

يُوْنُسَ ۚ لَمَّآ اٰمَنُوْا كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ

دَ یونس نه | هر کله چه دوی ایمان راوړو | (نو) مونږ لرے کړو | له دوی | عذاب | دَ ذلت

قوم نه ، هر کله چه هغوی ایمان راوړو ، نو مونږ ترے نه شرمونکے عذاب په دے دنیا کښے لرے

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ ﴿٩٨﴾ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ

په ژوند دَ دنیا کښے | او مونږ نفع ورسوله دوی ته | ترڅهٔ موده پورے | او که چرے غوښتلے | ستا رب

کړو ، او دوی ته مو تر یوے مودے پورے نفع ورسوله . او که ستا رب غوښتلے نو څومره

لَاٰمَنَ مَنْ فِي الْاَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا ۚ اَفَاَنْتَ تُكْرِهُ

نو ایمان به راوړلے | هغه چا چه په زمکه کښے دی | ټول په جمع | پس آیا ته | به مجبوره کړے

خلق چه په مخ دَ زمکے دی ټول به ایمان راوړے وو ، نو آیا ته خلق په دے مجبوره کوے

النَّاسَ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿٩٩﴾ وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ

خلق | تر دے چه | دوی شی | مؤمنان | او نشته دَ طاقت | یو نفس له

تر دے چه دوی ایمان راوړی او هیڅوک دا نهٔ شی کولے

اَنْ تُؤْمِنَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ

چه هغه ایمان راوړی | مګر | په حکم دالله | او هغه غورزوی | ناپاکی | په هغو خلقو چه

چه ایمان راوړی مګر دَ الله تعالیٰ په حکم سره ، او الله تعالیٰ پلیدی په هغه چا ورغورزوی چه دَ

لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ قُلِ انْظُرُوْا مَاذَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

نهٔ پوهیږی | ووایه | وګورئ | څهٔ شیزونه دی | په آسمانونو کښې | او په زمکه کښې

عقل نه کار نهٔ اخلی ۔ ورته ووایه چه لږ وګورئ په آسمانونو او په زمکه کښې څهٔ څهٔ شیزونه موجود دی

وَمَا تُغْنِي الْاٰيٰتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

او په کار نهٔ راځی | نخښې | او ویرے | هغو خلقو نه | چه ایمان نهٔ راوړی

او (دَ دنیا) ټولے نخښې او ټولے ویرے هغے خلقوله هیڅ فائده نهٔ ورکوی کوم چه ایمان راوړل نهٔ غواړی۔

فَهَلْ يَنْتَظِرُوْنَ اِلَّا مِثْلَ اَيَّامِ الَّذِيْنَ خَلَوْا

پس دوی انتظار نهٔ کوی | مګر | په شان | دَ ورځو | دَ هغو خلقو | چه تیر شوی دی

نو آیا اوس دوی دَ هغسے ورځو انتظار کوی کومے چه له دوی نه په

مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ قُلْ فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾

وړاندے له دوی نه | ووایه | پس انتظار کوئ | بیشکه زهٔ (هم) | تاسو سره | له انتظار کوونکو نه یم

وړاندے پیتو خلقو راغلے وے ۔ ورته ووایه چه ښه دهٔ تاسو هم انتظار کوئ او زهٔ هم تاسو سره انتظار کوم۔

ثُمَّ نُنَجِّيْ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كَذٰلِكَ ۚ حَقًّا

بیا | مونږ خلاصے ورکوو | خپلو پیغمبرانو ته | او هغو خلقو ته | چه ایمان ئے راوړے دے | دغه شان | حق دے

نو بیا به (دَ عذاب په وخت کښې) مونږ خپل پیغمبران او (نور) مؤمنان بچ کړو ، هم دغسے زمونږ ذمه واری

عَلَيْنَا نُنْجِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۳﴾ قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ

په مونږ باندے | چه مونږ بچ کړو | دَ ایمان خاوندان | ووایه | اے | خلقو!

دهٔ چه مؤمنان به بچ کړو ۔ (اے پیغمبره!) ووایه چه اے خلقو! کهٔ

اِنْ كُنْتُمْ فِيْ شَكٍّ مِّنْ دِيْنِيْ فَلَآ اَعْبُدُ الَّذِيْنَ

کهٔ چرے تاسو یئ | په شک کښې | له دین زما نه | نو زهٔ عبادت نهٔ کوم | دَ هغو

اوس هم زما دَ دین په حقله ستاسو څهٔ شک پاتے وی ، نو زهٔ دَ هغے معبودانو عبادت نهٔ کوم چه

تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ اَعْبُدُ اللّٰهَ الَّذِيْ

دَ کومو چه تاسو عبادت کوئ | سوا دَ الله نه | لیکن | زهٔ عبادت کوم | صرف دَ هغه الله

تاسو ئے بغیر دَ خدائے نه عبادت کوی ، بلکه زهٔ خو دَ هغے الله عبادت کوم چه ستاسو ژوند او

يَتَوَفّٰىكُمْ ۚ وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۴﴾ وَاَنْ اَقِمْ

چه مرګ درکوی تاسو ته | او ما ته حکم شوے دے | چه | یم زهٔ | دَ ایمان والو نه | او دا چه | نیغ کړه

مرګ دَ هغهٔ په قبضه کښې دے او ما ته حکم شوے دے چه په مؤمنانو کښې د شامل یم او دا حکم ئے راکړے دے

وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ۚ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٠٥﴾

مخ خپل | دين | حنيف ته | او مه کيږه ته | له مشرکانو نه

خپل مخ دَ دين غاړے ته يو مخيز کړه ، او په مشرکانو کښے مه شاملېږه .

وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ۚ فَإِنْ فَعَلْتَ

او مه بله | دَ الله نه سوا (بل څوک) | چه نهٔ نفع دررسوي تاته | او نهٔ نقصان دررسوي تاته | که ته داسے وکړے

او دَ الله تعالیٰ نه سوا دَ هغه چا نه دُعا مه غواړه چه نهٔ نفع درکولے شي او نهٔ ضرر درکولے شي، که

فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٠٦﴾ وَإِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ

نو بيشکه ته به | هغه وخت به | له ظالمانو نه | او که چرے ورسوي تاته الله | (دَ څهٔ) تکليف

داسے دِ وکړل نو په ظالمانو کښے به شمېږشے . او که الله تعالیٰ درته تکليف ورسوي ، نو بيا دَ

فَلَا كَاشِفَ لَهٗ إِلَّا هُوَ ۚ وَإِنْ يُّرِدْكَ بِخَيْرٍ

نو نشته څوک لرے کوونکے | دَ هغے | سوا دَ هغهٔ نه | او که چرے | هغه رسول غواړي تاته | (دَ څهٔ) ښيګړه

هغهٔ نه بل څوک ئے لرے کولے نهٔ شي ، او که هغه درته خير رسول غواړي نو دَ هغهٔ فضل

فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهٖ ۚ يُصِيْبُ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ

نو نشته څوک دفع کوونکے | دَ هغهٔ دَ فضل | رسوي | (دا فضل) | چا ته چه غواړي | له خپلو بندګانو

هيڅوک رد کولے نهٔ شي . دَ هغهٔ چه په کوم بنده باندې مرضي وشي نو فضل پرے کوي

وَهُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿١٠٧﴾ قُلْ يٰٓأَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ

او دے | بخښونکے | مهربان دے | او وايه | اے | خلقو | راغلے دے تاسو ته

او هغه بخښونکے رحم کوونکے دے . وايه چه اے خلقو ! تاسو ته دَ خپل رب دَ طرف

الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ ۚ فَمَنِ اهْتَدٰى ۚ فَإِنَّمَا يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ ۚ

حق (قرآن) | ستاسو دَ رب له طرف نه | پس څوک چه | په نيغه لاره راشي | پس بيشکه هغه په سمه لاره راځي | خپل ځان دَ پاره

نه حق رارسيدلے دے . نو څوک چه په سمه لار روان شو نو دَ خپل ځان دَ پاره روان شو .

وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَمَآ أَنَا عَلَيْكُمْ

او څوک چه | بے لارے شو | نو بيشکه هغه بے لارے کيږي | خپل ځان دَ پاره | او نهٔ يم | زهٔ | په تاسو باندې

او څوک چه ګمراه شو نو وبال ئے په خپل ځان شو ، او زهٔ ستاسو ځهٔ ذمه وار خو نهٔ

بِوَكِيْلٍ ﴿١٠٨﴾ وَاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى إِلَيْكَ وَاصْبِرْ

نګهبان . | او پيروي کوه ته | دَ هغه څهٔ | چه وحي کولے شي | تا ته | او صبر کوه

يم . او په هغے وحي عمل کوه کومه چه تاته راځي او صبر کوه

حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿١٠٩﴾

ترڅو چه | فيصله وکړي | الله | او دے | دَ ټولو نه ښهٔ | فيصله کوونکے دے

ترڅو چه الله تعالیٰ فيصله وکړي . او هغه ډير ښهٔ فيصله کوونکے دے .

ع ١١ / ١٤

سُوْرَةُ هُوْدٍ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّ ثَلٰثٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّعَشْرُ رُكُوْعَاتٍ

سورة هود مكي ده او پکښې ١٢٣ آيتونه او ١٠ رکوع گانې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع) د الله په نوم چه ډير مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے

شروع کوم د الله په نوم سره چه ډير مهربان د ډير زيات رحم خاوند دے

الٓرٰ كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ

الف لام را | (دا) کتاب دے | چه محکم کړے شول | آيتونه د دے | بيا په تفصيل سره بيان کړے شول | له طرفه | د حکمت والا

(قرآن) يو داسې کتاب دے چه آيتونه ئې (په دلائلو سره) مضبوط دي، او بيا دا چه پرانستی بيان شوی دی

خَبِيْرٍ ۝١ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ؕ اِنَّنِيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ

خبردار | چه عبادت مه کوه | سوا د الله نه | بيشکه زه | تاسو د پاره | د هغه له طرفه | ويروونکے

د يو حکيم باخبره د طرف نه، دا چه د الله نه سوا د بل چا عبادت مه کوی. زه د هغه د طرف نه تاسو د پاره ويروونکے

وَّبَشِيْرٌ ۝٢ وَّاَنِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ

او زيرے ورکوونکے يم | او دا چه | بخښنه وغواړئ | د خپل رب نه | بيا | توبه وکړئ | د هغه په حضور کښې

او تاسو ته زيرے ورکوونکے يم، او دا چه د خپل رب نه بخښنه غواړئ، بيا هغه ته ځان رجوع سا تئ

يُمَتِّعْكُمْ مَّتَاعًا حَسَنًا اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّيُؤْتِ

هغه به درکړی تاسو ته | سامان (د ژوند) | (ډير) ښه | يو مقرر وخت پورے | او | ورکړی به

هغه به درله (د ژوندون) ښکلے ساز و سامان تر يو مقرر وخته درکوی او (په آخرت کښې)

كُلَّ ذِيْ فَضْلٍ فَضْلَهٗ ؕ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّيْٓ اَخَافُ

هر | خاوند د بزرگئ ته | د هغه بزرگی | او که چرے تاسو مخ واړوئ | نو بيشکه زه | ويريږم

زيات ښه عمل کوونکو ته به زيات ثواب ورکړی، او که چرے تاسو (د الله تعالیٰ نه) مخ واړوئ نو بيشکه

عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيْرٍ ۝٣ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ ۚ وَهُوَ

په تاسو | د يوے لوئے ورځے د عذاب نه | هم د الله طرف ته | تاسو له واپس تلل دی | او هغه

زه په تاسو باندې د يوے لوئے ورځے د عذاب نه ويريږم. هم د الله تعالیٰ طرف ته ستاسو واپسی ده، او هغه

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝٤ اَلَآ اِنَّهُمْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ

په هر شيز باندې | قادر دے | واوره! | بيشکه دوی | را غبرگوی | خپلې سينې

په هر څه پوره پوره قدرت لری. واوره! دوی خپلې سينې تاووی چه د الله تعالیٰ

لِيَسْتَخْفُوْا مِنْهُ ؕ اَلَا حِيْنَ يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ ۙ يَعْلَمُ

چه پټ شی دوی | له هغه نه | واوره! | څه وخت | چه دوی اغوندی | جامے خپلې | (الله) پوهيږی

نه پټ شی. واوره! چه دوی څه وخت په ځان جامے را واچوی نو الله تعالیٰ نه هغه

مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۚ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ ۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝٥

په هغه څه | چه دوی ئې پټوی | او په هغه څه | چه ښکاره کوی ئې دوی | بيشکه هغه | پوهيږی | په رازونو | د سينو

هر څه معلوم دی کوم چه دوی پټوی او کوم چه ښکاره کوی هغه د زړونو په رازونو (هم) ښه خبردار دے.

وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِى الْاَرْضِ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ

او نه دے هیڅ | تلونکے (ساه دار) | په زمکه کښے | مګر | په الله ده | روزی د هغے | او پیژنی

او د زمکے په مخ تلونکے هیڅ جاندار داسے نشته چه د هغه روزی د الله تعالیٰ په ذمه نه وی، او هغه ته

مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا ۚ كُلٌّ فِى كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿٦﴾ وَهُوَ

د ده تیکاؤ ځایه | او د ده د ساتنے ځائے | هر څه | په کتاب | روښانه کښے دی | او هم هغه دے

د هر یو تن د ژوند ځائے او د لږ مودے استوګنے ځائے معلوم دے دا هر څه په یو واضحه کتاب کښے درج دی او الله تعالیٰ

الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِىْ سِتَّةِ اَيَّامٍ وَّكَانَ عَرْشُهٗ

چا چه | پیدا کړل | آسمانونه | او زمکه | په شپږو ورځو کښے | او ؤو | د هغه عرش

هغه ذات دے چه آسمانونه او زمکه ئے په شپږو ورځو کښے پیدا کړل، او د هغه عرش (حکومت)

عَلَى الْمَآءِ لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۗ وَلَئِنْ قُلْتَ

په اوبو باندے | چه و آزمائی تاسو | چه څوک له تاسو نه | ډیر ښه دے | په عمل کښے | او که چرے | ته ووائے

په اوبو قائم وو چه ستاسو ازمیښت وکړی چه څوک د رکښے د عمل په لحاظ ډیر ښه دے او (اے پیغمبره!) که ته ورته

اِنَّكُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ مِنْۢ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا

چه خامخا به تاسو راوچتولے شئ | پس له مرګ نه | نو ضرور به ووائی | هغه خلق | چه کافران دی

ووائے چه تاسو به د مرګ نه پس بیا راژوندی کیږئ، نو کافران به خامخا ووائی چه

اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٧﴾ وَلَئِنْ اَخَّرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ

نه دے | دا | مګر | جادو دے | ښکاره | او که چرے | وروستو کړو موږ | له دوی نه | عذاب

دا خو ښکاره جادو دے ـ او که چرے موږ له دوی نه تر یوے مودے عذاب

اِلٰٓى اُمَّةٍ مَّعْدُوْدَةٍ لَّيَقُوْلُنَّ مَا يَحْبِسُهٗ ۗ اَلَا يَوْمَ

تر یوے مودے | شمیرلے شوے | نو ضرور به ووائی دا خلق | څه شے | منع کړو دا | واوره! | په کومه ورځ چه

وروستو کړو، نو دوی وائی چه آخر څه شے (دا عذاب) منع کړو، واوره چه په کومه

يَأْتِيْهِمْ لَيْسَ مَصْرُوْفًا عَنْهُمْ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا

راشی په دوی باندے هغه (عذاب) | نه ئے | به شی واپس کولے | له دوی نه | او راګیر به کړی | دوی | (عذاب)

ورځ (عذاب) راشی نو له دوی نه به بیرته نه شی ګرځولے، او هغه عذاب به تر ے نه راتاؤ شی

كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٨﴾ وَلَئِنْ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً

په کوم پورے چه دوی | توقے کولے | او که چرے | وڅکوؤ موږ | بنیادم ته | د خپل طرف نه | رحمت

په کوم پورے چه به دوی توقے کولے او که موږ یو بنیادم ته د یو نعمت خوند ور کړو

ثُمَّ نَزَعْنٰهَا مِنْهُ ۚ اِنَّهٗ لَيَئُوْسٌ كَفُوْرٌ ﴿٩﴾ وَلَئِنْ اَذَقْنٰهُ

بیا | موږ واپس واخلو هغه | له هغه نه | بیشکه هغه (شی) | نا امیده | ناشکره | او که چرے | موږ وڅکوؤ هغه ته

او بیا ئے ترے نه واپس واخلو نو هغه نا امیده او ناشکره شی، او که چرے موږ هغه ته د څه

نَعْمَآءَ بَعْدَ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُوْلَنَّ ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ عَنِّيْ

ارام | پس | دَ تکلیف نه | چه رسیدلې وی دهٔ ته | نو ضرور به وائی | لاړل | تکلیفونه

تکلیف رسولو نه پس دَ نعمت مزه وڅکوو ، نو وائی چه تولے سختیانے له مانه (همیشهٔ پاره لرے شوے) | له مانه

اِنَّهٗ لَفَرِحٌ فَخُوْرٌ ﴿۱۰﴾ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

بیشکه هغه | ډیر خوشحاله | فخر کوونکے دے | مگر | کوم خلق چه | صبر وکړو | او عمل ئے وکړو | نیک

نو (په دا سے حال کښے) ډیر غاوره او فخر کوونکے وی ۔ مگر هغه خلق چه صبر کوی ، او نیک کارونه کوی

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ﴿۱۱﴾ فَلَعَلَّكَ تَارِكٌۢ بَعْضَ مَا

هم دا خلق دی | چه دوی پارهٔ | بخښنه ده | او اجر | ډیر لوئے | نو شاید چه ته | پریښودونکے یئے | څه هغه

دَ هغوی دَ پاره بخښنه هم ده او لوئے اجر هم دے ۔ نو (دوی په ډے اُمید کښے دی چه) شاید چه ته دَ (الله

يُوْحٰٓى اِلَيْكَ وَضَآئِقٌۢ بِهٖ صَدْرُكَ اَنْ يَّقُوْلُوْا لَوْلَآ

چه وحی ئے کولے شی | تا ته | او تنګیږی | په هغے | ستا سینه | چه | وائی دوی | ولے نهٔ

دَ) وحی نه څهٔ برخه (دَ دوی دَ خاطره پریږدے) او ستا زړهٔ په دے تنګیږی چه دوی وائی چه په دهٔ باندې

اُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ اَوْ جَآءَ مَعَهٗ مَلَكٌ ؕ اِنَّمَآ اَنْتَ نَذِيْرٌ ؕ

شوه نازله | په دهٔ باندې | خزانه | یا ولے رانغله | دهٔ سره | فرښته | بیشکه | چه ته | ډیرونکے یئے

خزانه ولے رانکوزه نهٔ شوه ، یا دا چه یوه فرښته ورسره ولے رانغله ، ته خو بس ویرونکے یئے او

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿۱۲﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ

او الله | په هر څیز باندې | نګهبان دے | یا | دوی وائی | چه دهٔ له ځانه جوړ کړے دے | وو ایه

(وړاندې) الله تعالیٰ دَ هر څیز کارساز دے ۔ آیا (دا خلق) وائی چه (قرآن) دهٔ دَ ځان نه جوړ کړے دے ۔ وو ایه

فَاْتُوْا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهٖ مُفْتَرَيٰتٍ وَّادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ

پس راوړئ تاسو | لس | سورتونه | په شان دَ دے | له ځان نه جوړ شوی | او راوبلئ | څوک چه رابللے شئ

چه ښهٔ ده نو دَ دے غوندې (یو) لس سورتونه تاسو هم په دروغه (جوړ کړئ او) راوړئ او دَ الله تعالیٰ نه سوا

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۳﴾ فَاِلَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ فَاعْلَمُوْٓا

سوا | دَ الله نه | که چرے تاسو یئ | رښتینی | پس که چرے دوی جواب درنه کړے شی | تاسو ته | نو پوهه شئ

چه په چا مو وس برکیږی هغه راوبلئ که تاسو رښتینی یئ ۔ نو که دوی دا کار ونهٔ کړے شی نو یقین وکړئ

اَنَّمَآ اُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَاَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ

چه هغه خو | نازل شوے دے | په علم دَ الله | او دا چه | نشته دے بل معبود | سوا دَ هغهٔ نه | پس آیا | تاسو

چه دا (کتاب) دَ الله په علم (او په قدرت) راغلے دے او دا چه بے دَ الله نه بل معبود نشته نو آیا تاسو (او س هم)

مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۴﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا نُوَفِّ

مسلمانان یئ | څوک چه | غواړی | ژوند | دَ دُنیا | او دَ دے زینت | نو مونږ پوره ورکوو

نهٔ مسلمانیږئ؟ څوک چه دَ دنیا ژوند او دَ دے رونق غواړی ، نو مونږ ورته دَ

إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ⑮ أُولَٰٓئِكَ

دوی ته | (بدله) دَ عملونو دَ دوی | په دنیا کښې | او دوی ته | په دې دنیا کښې | کم نهٔ شی ورکولے۔ | دا هغه
هغوی عملونه هم په دې دنیا کښې ورپوره کړو او هغوی په دنیا کښې په نقصان کښې نهٔ شی ساتلے، هم دا خلق

الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا

هغه خلق دی | چه نشته دے | دوی له | په آخرت کښې | سوا دَ اور نه | او برباد شول | څهٔ چه دوی وکړل | په دې کښې
دی دَ کوم دَ پاره چه په آخرت کښې دَ دوزخ دَ اور نه سوا بل څهٔ نشته او کوم نیک کارونه چه دوی په دنیا کښې

وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ⑯ أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِ

او باطل دی | څهٔ چه | دوی | کول | آیا څوک چه وی | په یو (واضح) دلیل باندې | دَ خپل رب دَ طرف نه
کړی وو ټول ضائع شول او څهٔ چه دوی کول ټول برباد شول۔ نو آیا څوک چه دَ خپل رب په واضحه لاره باندې قائم وی

وَيَتْلُوهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا

او لولی دے لره | یو ګواه | دَ هغهٔ له طرف نه | او دَ دهٔ نه وړاندې (ګواه وی) | کتاب | دَ موسیٰ | چه پیشوا
او دهٔ سره په دے قرآن کښې (معجزانه) شهادت هم وی او له دے نه وړاندې دَ موسیٰ علیه السلام کتاب دَ دهٔ پیشوا

وَرَحْمَةً ۚ أُولَٰٓئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ ۚ وَمَن يَكْفُرْ بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ

او رحمت وو | هم دا خلق | ایمان راوړی | په دې | او څوک چه | انکار وکړی | دَ دے | له فرقو نه
او دَ دهٔ دَ پاره وجه دَ رحمت وه هم دا خلق په دے (قرآن) باندې ایمان راوړی او کوم ټولے چه دَ دے نه انکار کوی

فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ ۚ فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۚ إِنَّهُ الْحَقُّ

پس اور | دَ دهٔ دَ وعدے ځائے دے | پس ته مهٔ کیږه | په شک کښې | له دے نه | بیشکه دا (کلام) | حق دے
نو هغوی ټیکاڼه دوزخ دے نو ته په دے حقله په شک شبهه کښې مهٔ پریوځه، بیشکه دا قرآن ستا دَ رب

مِن رَّبِّكَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ⑰ وَمَنْ أَظْلَمُ

ستا دَ رب له طرف نه | او لیکن | اکثر خلق | ایمان نهٔ راوړی | او څوک | زیات ظالم دے
له طرف نه برحق دے خو اکثر خلق په دے ایمان نهٔ راوړی۔ او له هغه چا نه زیات ظالم

مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ۚ أُولَٰٓئِكَ يُعْرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمْ

له هغه چا نه | چه تړی | په الله باندې | دروغ | هم دغه کسان | به پیش کولے شی | دَ خپل رب په وړاندې
څوک دے چه په الله تعالیٰ باندې دروغ وتړی ، دا سے خلق به خپل رب ته پیش کولے شی،

وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ هَٰٓؤُلَآءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ أَلَا

او وائی به | ګواهان | (چه) هم دا خلق دی | کوم چه | دروغ وویل | په خپل رب باندې | واوره
او ګواهان به بیرے شهادت ورکوی چه دا هغه خلق دی چه په خپل رب ئے دروغ تړلی وو، واوره!

لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ ⑱ الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ

لعنت دے | دَ الله | په ظالمانو باندې | کوم چه | منع کوی (خلق) | دَ لارے نه | دَ الله
چه په ظالمانو دَ الله تعالیٰ لعنت وریږی۔ په هغه چا چه دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه نور خلق منع کوی

وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا ۖ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ﴿١٩﴾ أُولَٰئِكَ لَمْ يَكُونُوا

او لټوي په هغې کښې | عيب | او دوی | دَ آخرت نه | منکر دی | دا خلق | دا سے نه وو

او په هغې کښې کږ ليچ پيدا کوي او دَ آخرت هم منکر دی ۔ دوی (الله تعالیٰ) په مزکه

مُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ

چه عاجزه کولے شوے (الله) | په زمکه کښې | او نهٔ وو | دوی دَ پاره | دَ الله نه سوا | څوک مددګار

عاجزه کولے نهٔ شی او دَ الله تعالیٰ په مقابله کښې څوک ئے مددګار هم نشته

يُضَاعَفُ لَهُمُ الْعَذَابُ ۚ مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوا

دوچند به کړے شی | دوی ح پاره | عذاب | نهٔ وو دوی (داسے) | چه دوی طاقت لرلے | دَ آورېدو | او نهٔ وو دوی

اوس به ورله يو په دوه سزا ورکولے شی (ولے چه) نهٔ دوی (حقه خبره) آورېدے شوه او نهٔ

يُبْصِرُونَ ﴿٢٠﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُم

چه کتلے ئے شوے | هم دا خلق دی | کوم چه | نقصان وکړو | دَ خپلو ځانونو | او ورک شول | له دوی نه

دوی (ښيغه لاره) کتلے شوه ۔ دا هغه خلق دی چه خپل ځانونه ئے تاوانی کړل او تن ترے نه تول جوړ

مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢١﴾ لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ ﴿٢٢﴾

هغه څهٔ چه دوی به تړل | هيڅ شک نشته | چه دوی | په آخرت کښې | نقصان موندونکی دی.

کړی معبودان ورک شول او لازمی خبره دا چه دوی به په آخرت کښې دَ ټولو نه زيات تاوانيان وی.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَخْبَتُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ

بيشکه | کوم خلق چه | ايمان راؤړو | او عملونه ئے وکړو | نيک | او عاجزی ئے وکړه | دَ خپل رب په وړاندې

بيشکه چا چه ايمان راؤړو او نيک کارونه ئے وکړل او دَ خپل رب په وړاندې ئے عاجزی وکړه

أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢٣﴾ مَثَلُ الْفَرِيقَيْنِ

هم دا خلق | جنتيان دی | دوی به | په دے کښې | هميشه وی | مثال | دَ دواړو ډلو دے

هم دغه خلق جنتيان دی دوی به په جنت کښې هميشه وُسيږی. دَ دے دواړو ډلو حالت

كَالْأَعْمَىٰ وَالْأَصَمِّ وَالْبَصِيرِ وَالسَّمِيعِ ۚ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ۚ

په شان دَ ړوند | او د کوڼ | او دَ کتونکی | او دَ آورېدونکی | آيا | دواړه برابر دی | په مثال کښې

داسے دے کهٔ (يو خو) ړوند کوڼ (وی) او (بل) ليدونکے او آورېدونکے (وی) آيا دا دواړه برابر کيدے شی

أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٢٤﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ إِنِّي لَكُمْ

آيا نصيحت نهٔ اخلئ تاسو | او بيشکه | مونږ ليږلے وو | نوح | خپل قوم ته | چه بيشکه زهٔ تاسو دَ پاره

نو آيا تاسو غور نهٔ کوئ ؟ او بيشکه مونږ نوح عليه السلام دَ دهٔ دَ قوم طرف ته وليږلو (هغهٔ ووئيل) چه زهٔ

نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٢٥﴾ أَن لَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ ۖ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ

وېروونکے يم | ښکاره | (او دا) چه تاسو عبادت مهٔ کوئ | سوا دَ الله نه | بيشکه زهٔ وېرېږم | په تاسو باندې

تاسو لره دَ الله دَ نافرمانئ نه صفا صفا وېروونکے يم او دا چه دَ الله نه سوا دَ بل چا عبادت مهٔ کوئ، ما سره اندېښنه ده چه په

عَذَابَ يَوْمٍ اَلِيْمٍ ﴿۲۶﴾ فَقَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ

دَعذاب | دَورځې | درد ورکوونکې | پس ووئیل | هغې سردارانو | چه کافران ؤو | دَدهٔ له قوم نه

تاسو بانډې یوه ورځ درد ناک عذاب راشي ـ نو دَ هغهٔ دَ قوم سردارانو چه کافران ؤو جواب ورکړو

مَا نَرٰىكَ اِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ

نهٔ وينو مونږ تا (څهٔ نور) | مګر انسان | په شان زمونږ | او نهٔ | وينو مونږ تا | چه پيروي کړې وې ستا چا

چه مونږ ته خو تهٔ بس دَ ځان غونډې يو بنيادم ښکارې او مونږ دا ګورو چه ستا پيروي په مونږ کښې

اِلَّا الَّذِيْنَ هُمْ اَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّاْيِ ۚ وَمَا نَرٰى لَكُمْ عَلَيْنَا

سوا دَ هغو خلقو نه | چه ذليل دي په مونږ کښې | په سرسري رائې سره | او مونږ نهٔ وينو | تاسو ته پاره | په خپل ځان

هم رذيلانو خلقو اختيار کړې ده چه دَ سرسري عقل خاوندان دي او مونږ په تاسو کښې هيڅ خبره

مِنْ فَضْلٍ ۭ بَلْ نَظُنُّكُمْ كٰذِبِيْنَ ﴿۲۷﴾ قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ

څهٔ فضيلت | بلکه | مونږ خوخيال کوو په تاسو | دَ دروغژن | هغهٔ ووئيل | اے زما قومه! | تاسو خو ؤګورئ

هم (دَ ځان نه) زياتي نهٔ وينو بلکه ګمان کوو چه تاسو دروغژن يئ۔ (نوح ؑ) ووئيل اے زما قومه! دا خو وښايئ

اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَاٰتٰىنِيْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِهٖ

که چرې | زهٔ يم | په واضح دليل باندې | دَ خپل رب دَ طرف نه | او راکړې هغهٔ ماته | رحمت (نبوت) | له خپل طرف نه

چه که زهٔ دَ خپل رب دَ طرف نه په يو ښکاره دليل والا يم او هغهٔ دَ خپل طرف نه په ما باندې خپل رحمت کړے

فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ ۭ اَنُلْزِمُكُمُوْهَا وَاَنْتُمْ لَهَا كٰرِهُوْنَ ﴿۲۸﴾

بيا هغه (دليل) ښکاره نهٔ شي | تاسو ته | آيا مونږ هغه به تاسو په زور ومنو | او تاسو | هغه | نهٔ خوښوئ

دے خو هغه (رحمت) تاسو ته نهٔ ښکاري نو آيا مونږ هغه په تاسو په زور منلے شو سره دَ دے چه هغه تاسو نهٔ خوښوئ

وَيٰقَوْمِ لَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا ۭ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ

او اے زما قومه! | زهٔ نهٔ غواړم له تاسو نه | په دے | (څهٔ) مال | نهٔ دے | اجر زما | مګر صرف | په الله

او اے زما قومه! زهٔ په دے (تبليغ باندې) تاسو نه هيڅ مال نهٔ غواړم، زما اجر خو صرف دَ الله تعالىٰ په ذمه دے

وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۭ اِنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ

او نهٔ يم زهٔ | شړونکے | دَ هغو خلقو | چه ايمان ئې راوړے دے | بيشکه دوی | ملاقات کوونکي دي | خپل رب سره

او کومو خلقو چه ايمان راوړے دے زهٔ هغوی دَ خپل ځان نه شړلے نهٔ شم هغوی دَ خپل رب سره ملاقات کوونکي دي

وَلٰكِنِّيْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ﴿۲۹﴾ وَيٰقَوْمِ مَنْ يَّنْصُرُنِيْ

ليکن زهٔ | وينم تاسو | دا سے قوم | چه تاسو جهالت کوئ | او اے زما قومه! | څوک به مدد وکړي زما

بلکه زهٔ خو دا ګورم چه تاسو په جهالت کښې پراته يئ ـ او اے زما قومه! څوک به دَ الله تعالىٰ په مقابله

مِنَ اللّٰهِ اِنْ طَرَدْتُّهُمْ ۭ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ

دَ الله په مقابله کښې | که چرې | زهٔ دوی وشړم | نو آيا تاسو غور نهٔ کوئ؟ | او زهٔ دا نهٔ وايم | تاسو ته | چه ما سره

کښې زما مدد وکړي که زهٔ دوی وشړم نو آيا تاسو غور نهٔ کوئ؟ او نهٔ زهٔ تاسو ته دا وايم چه ما سره

خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ اِنِّىْ مَلَكٌ وَّ

خزانے دی | دَ الله | اونهٔ (داچه) | زهٔ عالم یم | په غیبو باندې | اونهٔ | زهٔ دا وایم | چه زهٔ | فرښته یم | او

دَ الله تعالیٰ خزانے دی اونهٔ دا وایم چه دَ غیبو علم لرم ، او نهٔ دا دعوٰی لرم چه زهٔ فرښته یم

لَآ اَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ تَزْدَرِىْٓ اَعْيُنُكُمْ لَنْ يُّؤْتِيَهُمُ اللّٰهُ خَيْرًا

نهٔ زهٔ وایم | هغه کسانو ته چه | سپک ګوری ورته | سترګے ستاسو | چه هرګز به نهٔ ورکوی دوی ته | الله | خیر نعمت

نهٔ دَ هغه کسانو په حقله چه تاسو ورته دَ حقارت په نظر ګورئ دا وایم چه الله تعالیٰ به ورله هیڅ خیر نهٔ ورکوی

اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا فِىْٓ اَنْفُسِهِمْ ۚ اِنِّىْٓ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٣١﴾

الله | ښهٔ پوهه دے | په هغه څهٔ | چه دَ دوی په زړونو کښے دی | بیشکه زهٔ | په هغه وخت | به له ظالمانو نه یم

الله تعالیٰ دَ هغوی دَ زړونو په حال ښهٔ خبر دے ، که زهٔ داسے ووایم نو په ظالمانو کښے به شمیر شم.

قَالُوْا يٰنُوْحُ قَدْ جٰدَلْتَنَا فَاَكْثَرْتَ جِدَالَنَا فَاْتِنَا

دوی ووئیل | اے نوحؑ ! | تا جګړه وکړه مونږ سره | پس ډیره وکړه تا | مونږ سره جګړه | پس ته راوله مونږ ته

هغوی ورته ووئیل اے نوحؑ ! تا مونږ سره بحث وکړو او ډیر زیات بحث دِ وکړو اوس بس هغه څیز

بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿٣٢﴾ قَالَ اِنَّمَا يَاْتِيْكُمْ

هغه څهٔ چه وعدے کوے ته مونږ سره | که چرے ته یے | له رښتیا ویونکو نه | هغه ووئیل | بیشکه چه را به ولی تاسو ته

راوله دَ کوم نه چه ته مونږ همیشه ویروے که ته رښتینے یے ؟ (نوحؑ ورته) ووئیل چه هغه خو به الله تعالیٰ

بِهِ اللّٰهُ اِنْ شَآءَ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿٣٣﴾ وَلَا يَنْفَعُكُمْ نُصْحِىْٓ

هغه | الله | که چرے وغواړی | او نهٔ | یئ تاسو | عاجزه کوونکی | او نهٔ به فائده ورکوی تاسو ته | زما نصیحت

تخپله په تاسو راولی که وغواړی او تاسو هغه عاجزه کولے نهٔ شئ او زما نصیحت به تاسو ته هیڅ فائده

اِنْ اَرَدْتُّ اَنْ اَنْصَحَ لَكُمْ اِنْ كَانَ اللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يُّغْوِيَكُمْ ؕ هُوَ

که چرے زهٔ وغواړم | چه | زهٔ نصیحت وکړم | تاسو ته | که چرے وغواړی الله | چه بے لارے کړی تاسو | هم دے

ورنهٔ کړی که چرے زهٔ تاسو ته نصیحت کول وغواړم هر کله چه الله تعالیٰ ته ستاسو ګمراهی منظوره وی هغه

رَبُّكُمْ ۟ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٣٤﴾ ؕ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ

رب دے ستاسو | او دَ دهٔ طرف ته | به تاسو واپس کیږئ | آیا دوی وائی | چه له ځانه جوړ کړے دے دهٔ (قرآن)

ستاسو رب دے او هم هغهٔ ته به تاسو ټول واپس کیږئ . آیا دوی داوائی چه دهٔ دا (قرآن) په دروغه جوړ کړے

قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَعَلَىَّ اِجْرَامِىْ وَاَنَا بَرِىْٓءٌ مِّمَّا

ووایه | که چرے ما له ځانه دا جوړ کړے وی | نو هم په ما دے | زما جرم (ګناه) | او زهٔ بیزاره یم | له هغه څه نه

دے؟ ورته ووایه چه که ما دَ ځانه جوړ کړے وی نو دَ دے جرم به په ما وی او کوم جرمونه چه تاسو کوئ نو زهٔ دَ

تُجْرِمُوْنَ ﴿٣٥﴾ ع وَاُوْحِىَ اِلٰى نُوْحٍ اَنَّهٗ لَنْ يُّؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ

چه تاسو جرم کوئ | او وحی وکړے شوه | دَ نوحؑ طرف ته | چه بیشکه | هیڅ کله به ایمان نهٔ راوړی | ستا دَ قوم نه

هغے نه بری یم او نوح علیه السلام ته وحی وکړے شوه چه ستا په قوم کښے چا چه ایمان راوړو هغهٔ راوړو دوس

إِلَّا مَنْ قَدْ اٰمَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۳۶﴾

سوا | دَ هغه چانه | چه ایمان ئے راوړے دے | پس ته غم مهٔ کوه | په وجه دَ هغه څهٔ | چه دوی ئے کوی

پېکښې بل هیڅوک ایمان نهٔ راوړی ، نو ته دَ دوی په کارونو هیڅ غم مهٔ کوه.

وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا وَلَا تُخَاطِبْنِيْ فِي الَّذِيْنَ

او ته جوړه کړه | کشتئ | زمونږ په وړاندې | او زمونږ په حکم | او مهٔ | کوه خبره ماسره | دَ هغو په باره کښې

او زمونږ په نګرانئ کښې بوه کشتئ جوړه کړه او زمونږ په حکم ئے جوړه کړه او ماسره دَ ظالمانو په حقله

ظَلَمُوْا ۚ إِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۳۷﴾ وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ ۖ وَكُلَّمَا مَرَّ

چه ظلم ئے کړے دے | بېشکه دوی | غرقیدونکی دی | او جوړولهٔ | کشتئ | او هرکله چه به | تیریدل

خبره مهٔ کوه ، دوی به خامخا ډوب کیږی ، او نوح علیه السلام کشتئ جوړوله ، او هرکله چه دَ قوم

عَلَيْهِ مَلَاٌ مِّنْ قَوْمِهٖ سَخِرُوْا مِنْهُ ۗ قَالَ إِنْ تَسْخَرُوْا

دَ هغهٔ په خوا کښې | سرداران | دَ دهٔ دَ قوم | نو توقے به کولے دوی | دهٔ پورے | دهٔ وویل | که چرے | تاسو خاندئ

سرداران به ئے په خوا کښې تیریدل نو توقے به ئے ورپورے کولے، نوح علیه السلام ورته وویل که تاسو مونږ

مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنْكُمْ كَمَا تَسْخَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ

مونږ پورے | نو بېشکه مونږ به خاندو | په تاسو پورے | لکه چه | تاسو خاندئ | پس ژر به | تاسو ته معلومه شی

پورے ملنډے کوئ نو مونږ به په تاسو پورے خاندو لکه چه تاسو خندا اګانے کوئ. ډیر ژر به درته معلومه شی

مَنْ يَّأْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۳۹﴾

چه په چا راځی | (هغه) عذاب | چه رسوا به کړی هغه | او نازلیږی | په هغهٔ | عذاب | همیشه

چه په چا باندې شرمونکے عذاب راځی او په چا باندې دَ همیشه عذاب راکوزیږی.

حَتّٰۤى إِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ ۙ قُلْنَا احْمِلْ فِيْهَا

تر دے چه | هرکله راغے | زمونږ حکم | او جوش ووهلو | تنور | (نو) حکم وکړو مونږ | وُخیژوه | په کشتئ کښې

(دا خبرے کیدلے) تر دے چه زمونږ حکم راغے او دَ مزکے نه اُوبهٔ راوُوتلے نو مونږ ورته حکم وُکړو چه په دے کښې

مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ

دَ هر قسم | جوړے (نر او ماده) | دوه | او خپل کور والا | سوا دَ هغه چانه | چه ثابت شوے دے په هغهٔ

دَ هر قسم ځناورو نه یو یو جوړه یعنی دوه دوه تنه وُخیژوه او دَ خپل کور خلق هم مګر (هغه نه) دَ چا په حقله

الْقَوْلُ وَمَنْ اٰمَنَ ۗ وَمَآ اٰمَنَ مَعَهٗۤ إِلَّا قَلِيْلٌ ﴿۴۰﴾

حکم | او (هغه هم) چه ایمان ئے راوړے دے | او نهٔ وُو ایمان راوړے | دهٔ سره | مګر لږ و کسانو

چه فیصله شوے ده او هغه خلق (هم پکښې کښینوه) چه ایمان ئے راوړے دے او (نوح) سره ډیرو کمو خلقو ایمان راوړے وو

وَقَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا ۗ إِنَّ رَبِّيْ

او دهٔ ووئیل | (چه) سواره شئ | په دے کښې | دَ الله په نوم سره | په روانیدو دَ دے | او وُدریدو دَ دے کښې | بېشکه زما رب

او نوح وفرمائیل په دے کشتئ کښې سواره شئ دَ دے روانیدل او وُدریدل دَ الله تعالیٰ په نوم دی بېشکه زما رب

لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٤١﴾ وَهِيَ تَجْرِيْ بِهِمْ فِيْ مَوْجٍ كَالْجِبَالِ

بخښونکے | مهربان دے | او هغه | روانه وه | چه پکښے وو دوئ | په موجونو کښے | په شان د غرونو

بخښونکے مهربان دے او کشتئ هغوئ لره د غرونو په شان دنګو چپو کښے روان کړل

وَنَادٰى نُوْحُ ۨابْنَهٗ وَكَانَ فِيْ مَعْزِلٍ يّٰبُنَيَّ ارْكَبْ مَّعَنَا

او آواز وکړو | نوح | خپل ځوئ ته | او هغه وو | په غاړه | اے زما ځویه! | سور شه | مونږ سره

او نوح علیه السلام خپل ځوئ ته آواز وکړو او هغه یو اړخ ته ولاړ وو، اے زما ځویه! مونږ سره راسور شه

وَلَا تَكُنْ مَّعَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٤٢﴾ قَالَ سَاٰوِيْٓ اِلٰى جَبَلٍ يَّعْصِمُنِيْ

او مه کیږه ته | کافرانو سره | هغهٔ ووئیل | زهٔ به پناه واخلم | په یو غر باندِ | هغه به بچ کړی

او کافرانو سره مهٔ پاتے کیږه. هغهٔ ووئیل زهٔ به ډیر زر د یو غر پناه واخلم چه ما به د اوبو

مِنَ الْمَآءِ ؕ قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ

(د طوفان) د اوبو نه | نوح ووئیل | هیڅوک بچ کوونکے نشته | نن | د الله د حکم نه | مګر په چا چه | هغه رحم وکړی

نه بچ کړی (نوح) ؤفرمائیل، نن د الله تعالیٰ د عذاب نه څوک بچ کوونکے نشته، مګر په چا چه هغه

وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِيْنَ ﴿٤٣﴾ وَقِيْلَ يٰٓاَرْضُ

او حائله شوه | د دوی په مینځ کښے | چپه | نو هغه شو | له ډوبیدونکو نه | او وویلے شو | اے زمکے!

مهربان وی، په دے کښے د دواړو ترمینځه یوه چپه راوُچته شوه نو هغه هم د نورو سره ډوب شو. او حکم وشو چه اے زمکے!

ابْلَعِيْ مَآءَكِ وَيٰسَمَآءُ اَقْلِعِيْ وَغِيْضَ الْمَآءُ وَقُضِيَ الْاَمْرُ

ښکته راکاږه | خپلے اوبهٔ | او اے آسمانه! | منع شه | او کمے شوے | اوبهٔ | او پوره شو | کار

خپلے اوبهٔ ښکته راکاږه او اے آسمانه! بس شه نو اوبهٔ کمے شوے او کار پوره کړے شو،

وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُوْدِيِّ وَقِيْلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٤﴾

او ودریده له (کشتئ) | په جودی غر باندِ | او وویلے شو | لرے دِ دی (د رحمت نه) | ظالمان خلق.

او کشتئ د جودی په غر باندِ ودریده او وویلے شو چه ظالم قوم د پاره هلاکت دے.

وَنَادٰى نُوْحٌ رَّبَّهٗ فَقَالَ رَبِّ اِنَّ ابْنِيْ مِنْ اَهْلِيْ

او آواز وکړو | نوح | خپل رب ته | پس دهٔ ووئیل | اے زما ربه! | بیشکه | زما ځوئے | زما د کور والؤ نه دے

او نوح علیه السلام خپل رب ته آواز وکړو او دُے ووئیل چه اے زما ربه! بیشکه زما ځوئے زما کور والؤ کښے شامل دے

وَاِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَاَنْتَ اَحْكَمُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يٰنُوْحُ

او بیشکه | ستا وعده | رښتینے ده | او ته | د ټولونه ښهٔ فیصله کوونکے یئے | ووئیل (الله) | اے نوح

او ستا وعده بالکل رښتینے ده او تهٔ خو د هر یو حاکم د پاسه لوئے حاکم یئے. الله ورته ووئیل چه اے نوح

اِنَّهٗ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ ۚ اِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ۖ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا

بیشکه دے | نهٔ دے | ستا د کور والؤ نه | بیشکه دَ دهٔ | عمل | نیک نهٔ دے | پس سوال مهٔ کوه له ما نه | د هغه

دے ستا د کور په خلقو کښے شامل نهٔ دے، د دهٔ عملونه ښهٔ نهٔ دی نو تهٔ ما نه د داسے څیز سوال مهٔ کوه

لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ۖ إِنِّيٓ أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ الْجٰهِلِينَ ۝٤٦ قَالَ

چه نشته دے | تا ته | په هغې باندې | علم | بیشکه زهٔ | نصیحت کوم تا ته | چه (نهٔ) شے تهٔ | له جاهلانو نه | دهٔ ووئیل

چه نهٔ پرے نهٔ پوهیږے ، زهٔ در ته نصیحت کوم چه چرے د نادانانو عونډې نهٔ شے ۔ نوحؑ ووئیل

رَبِّ إِنِّيٓ أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْـَٔلَكَ مَا لَيْسَ لِي بِهِ

اے زما ربه ! | بیشکه زهٔ | ستا پناه غواړم | (له دے نه) چه | سوال وکړم لهٔ تا نه | د هغه څهٔ | چه نشته دے ما ته | د هغې

چه اے زما ربه ! زهٔ په تا سره پناه غواړم چه زهٔ له تا نه داسے څیز وغواړم چه پوهه پرے نهٔ

عِلْمٌ ۖ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِيٓ أَكُن مِّنَ الْخٰسِرِينَ ۝٤٧

علم | او که چرے نهٔ بخښنه ونهٔ کړے ما ته | او تهٔ په ما رحم و(نهٔ) کړے | (نو) شم به زهٔ | له نقصان مونډونکو نه

یم ، او که تهٔ ما ونهٔ بخښے او په ما رحم ونهٔ کړے نو زهٔ به تاوانی شم ۔

قِيلَ يٰنُوحُ اهْبِطْ بِسَلٰمٍ مِّنَّا وَبَرَكٰتٍ عَلَيْكَ وَعَلٰىٓ أُمَمٍ

حکم وشو | اے نوح ! | ښکته راشه | په سلامتیا سره | زمونږ له طرف نه | او برکتونو سره | په تا باندې | او په هغه امتونو باندې

ورته حکم وشو چه اے نوح ! (اوس) کوز شه ! زمونږ له طرف نه په تا باندې او په هغه امتونو باندې چه تا سره دی

مِّمَّن مَّعَكَ ۚ وَأُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُم مِّنَّا

د هغه خلقو نه | چه تا سره دی | او څهٔ امتونه | کوم ته چه به مونږ زر فائده ورکړو | بیا به هغوی ته ورسیږی | زمونږ له طرف نه

سلامتیا او برکت وی ، او داسے امتونه به هم راځی چه مونږ به ورله لږ ورځے عیشونه ورکړو بیا به پرے

عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝٤٨ تِلْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَآ إِلَيْكَ ۖ

عذاب | دردناک | دا (قول) | خبرونه دی | د غیبو | چه مونږ وحی رالیږو د هغې | تا ته

زمونږ د طرف نه دردناک عذاب راشی ۔ (اے پیغمبره !) دا د غیبو خبرونه دی چه مونږ تا ته د وحی په ذریعه را ولیږل

مَا كُنتَ تَعْلَمُهَآ أَنتَ وَلَا قَوْمُكَ مِن قَبْلِ هٰذَا ۖ فَاصْبِرْ ۖ إِنَّ

نهٔ تهٔ په هغې باندې پوهیدلے | او نهٔ ستا قوم | له دے نه وړاندې | پس صبر کوه | بیشکه

له دے نه وړاندې نهٔ تا ته معلوم وو او نهٔ ستا قوم ته ، پس صبر کوه ، بیشکه

الْعٰقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ۝٤٩ وَإِلٰى عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ قَالَ يٰقَوْمِ

ښهٔ انجام خو | د پرهیزګارو دے | او د عاد طرف ته (مونږ ولیږلو) | د دوی ورور | هود | دهٔ ووئیل | اے زما قومه !

ښهٔ انجام خو هم د پرهیزګارو دے ۔ او قوم د عاد طرف ته مو د دوی ورور هود (ولیږلو) دهٔ ووئیل اے زما قومه !

اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُۥٓ ۖ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا

عبادت کوئی د الله | (چه) نشته دے تاسو پاره | هیڅ یو معبود | سوا له دهٔ نه | نهٔ یئی تاسو | مګر صرف

تاسو د الله تعالیٰ عبادت کوئی د هغهٔ نه بغیر ستاسو بل معبود نشته ، تاسو خو صرف دروغ

مُفْتَرُونَ ۝٥٠ يٰقَوْمِ لَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ

له ځانه خبرے جوړونکی | اے زما قومه ! | زهٔ نهٔ غواړم له تاسو نه | په دے | (څهٔ) اجر | نهٔ دے | زما اجر

تړلی دی ۔ اے زما قومه ! زهٔ تاسو نه په دے (تبلیغ) باندې هیڅ بدله نهٔ غواړم زما بدله خو

إِلَّا عَلَى الَّذِي فَطَرَنِي ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٥١﴾ وَيَا قَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ

مگر | په هغه ذات کوم چه | زهٔ پیدا کرم | پس آیا تاسو عقل نهٔ لرئ | او اے زما قومه! | تاسو بخښنه غوښتئ | د خپل رب نه

د هغه ذات په ذمه ده چه زهٔ ئے پیدا کړے یم نو آیا تاسو دَ عقل نه کار نهٔ اخلئ. او اے زما قومه! دَ خپل رب نه بخښنه غوښتئ

ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً

بیا رجوع کوئ | هغهٔ طرف ته | هغه به رالیږی | آسمان (نه) | په تاسو باندِ | په شیبو شیبو باران | او زیات به کړی | طاقت

بیا هغهٔ ته توجه کوئ نو هغه به په تاسو باندِ په شیبو شیبو باران ورووی او تاسو له به دَ دے طاقت سره

إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ ﴿٥٢﴾ قَالُوا يَا هُودُ مَا جِئْتَنَا

ستاسو په موجودهٔ طاقت کښے | او مخ مهٔ اړوئ تاسو | گناهگاران شوی | دوی ووئیل | اے هودٔ! | نهٔ دے راوړے تا مونږ ته

نور زیات طاقت در کړی او (دَ حق نه) مخ نه مهٔ اړوئ چه مجرمان به شئ. دوی جواب ورکړو چه اے هوده! تا خو مونږ ته

بِبَيِّنَةٍ وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِي آلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ

څهٔ دلیل | او مونږ نهٔ یُو | پریښودونکی | خپل معبودان | په خبره ستا | او نهٔ یُو مونږ په تا

څهٔ واضح دلیل نهٔ دے راوړے، او مونږ خپل معبودان ستا په وینا پریښودونکی نهٔ شو، او نهٔ مونږ په تا ایمان

بِمُؤْمِنِينَ ﴿٥٣﴾ إِنْ نَقُولُ إِلَّا اعْتَرَاكَ بَعْضُ آلِهَتِنَا بِسُوءٍ ۗ

ایمان راوړونکی | نهٔ وایُو مونږ | مگر (داچه) رسولے دے تا ته | ځینې معبودانو زمونږ | څهٔ ضرر

راوړونکی یُو. مونږ خو صرف دا وایُو چه زمونږ یو معبود نهٔ په دے مصیبت اخته کړے یے.

قَالَ إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ وَاشْهَدُوا أَنِّي بَرِيءٌ مِمَّا تُشْرِكُونَ ﴿٥٤﴾

دهٔ ووئیل | بیشکه زهٔ گواه کوم | الله | او تاسو هم گواه شئ | چه زهٔ | وبیزاره یم | له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے شریکوئ

هودؑ ووئیل چه بیشکه زهٔ الله تعالیٰ گواه کوم او تاسو هم گواهان وسیرئ چه زهٔ دَ ستاسو شرک نه وبیزاره یم

مِنْ دُونِهِ ۖ فَكِيدُونِي جَمِيعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُونِ ﴿٥٥﴾ إِنِّي تَوَكَّلْتُ

دَ هغهٔ نه سوا | پس تدبیر وکړئ زما خلاف تاسو | ټول | بیا | مهلت مهٔ راکوئ ما ته | ما خو | توکل وکړو

دَ الله تعالیٰ نه علاوه تاسو ټول ما ته فریبونه جوړ کړئ او بیا ما ته مهلت مهٔ راکوئ. زما په الله تعالیٰ باندِ

عَلَى اللَّهِ رَبِّي وَرَبِّكُمْ ۚ مَا مِنْ دَابَّةٍ إِلَّا هُوَ آخِذٌ

په الله باندِ | چه زما رب دے | او ستاسو (هم) رب دے | نشته څهٔ (ساداره زمکه) تلونکے | مگر هغهٔ | نیوونکے دے

توکل دے چه زما هم رب دے او ستاسو هم رب دے، دا سے هیڅ یو ژوندے نشته چه دَ هغهٔ تندے دَ الله تعالیٰ

بِنَاصِيَتِهَا ۚ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴿٥٦﴾ فَإِنْ تَوَلَّوْا

تندے دَ هغهٔ | بیشکه | زما رب | په نیغه لاره باندِ دے | پس که چرے تاسو مخ واړوئ

په قبضه کښے نهٔ وی، بیشکه زما رب (دَ حق وانصاف) په نیغه لاره باندِ دے. او کهٔ تاسو مخ اړوئ

فَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ مَا أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَيْكُمْ ۚ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي

نو ما در رسولے دے تاسو ته | (هغه پیغام) چه رالیږلے شوے یم زهٔ په هغے | تاسو ته | او ستاسو جانشین به کړی | زما رب

نو ما یقیناً هر هغه پیغام تاسو ته در رسولے دے په کوم سره چه زهٔ تاسو ته رالیږلے شوے یم او زما رب به ستاسو په

قَوْمًا غَيْرَكُمْ ۚ وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا ۚ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ

يو (بل) قوم | تاسو نه علاوه | او تاسو به نقصان ورته نه رسولے شئ هغهٔ ته | د هيڅ څيز | بيشکه زما رب | د هر څيز

ځائے يو بل قوم آباد کړی او تاسو به هغهٔ ته هيڅ نقصان رسولے نهٔ شئ ، زما رب د هر څيز نګهبان

حَفِيظٌ ﴿٥٧﴾ وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ آمَنُوا

نګران دے | او هر کله چه راغے | زمونږ حکم | نو خلاصے ورکړو مونږ | هود ته | او هغو خلقو ته | چه ايمان ئے راوړے وو

دے ۔ او څهٔ وخت چه زمونږ حکم راورسيدو نو مونږ هود عليه السلام او د هغهٔ ايماندار ملګری په خپله

مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَنَجَّيْنَاهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٥٨﴾ وَتِلْكَ

د دهٔ سره | په خپل رحمت | او مونږ خلاصے ورکړو دوی ته | له سخت عذاب نه | او دا دے

مهربانئ بچ کړل ۔ او هغوی مو د ډير سخت عذاب نه بچ کړل ۔ او دغه قوم د

عَادٌ ۖ جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُ وَاتَّبَعُوا

(قوم د) عاد | کوم چه انکار وکړو | د آيتونو | د رب خپل | او نافرمانی ئے وکړه | د هغهٔ د رسولانو | او پيروی ئے وکړه

عادوو ، چه د خپل رب د نخښو نهٔ ئے انکار وکړو او د هغهٔ د پيغمبرانو نافرمانی ئے وکړه او د هر ظالم

أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٥٩﴾ وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً

د حکم | د هر سرکش | جګړه مار | او ولګولے شو دوی پسے | په دے دنيا کښے (هم) | لعنت

او سرکش د حکم پيروی ئے وکړه ۔ آخر دا چه په دے دنيا کښے هم لعنت ورپسے شو ، او د

وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ

او | په ورځ د قيامت (هم) | واوره ! | بيشکه | قوم د عاد | انکار وکړو | د خپل رب | واوره ! | لعنت دِ دوی په عاد

قيامت په ورځ به هم ورپسے وی ، ياد ساتئ چه د عاد قوم د خپل رب نه منکر شو ، خبر شئ چه د هود قوم عاد د

قَوْمِ هُودٍ ﴿٦٠﴾ وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ

چه قوم د هود وو | او (قوم د) ثمود طرف ته | (مونږ ولیږلو) د دوی ورور | صالح | دهٔ ووئيل | اے زما قومه !

رحمت نه) لرے پریوتل ۔ او ثمود (نومے قوم) ته (مو) د دوی ورور صالح وليږلو دهٔ ورته ووئيل چه اے زما قومه !

اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ هُوَ أَنشَأَكُم

عبادت وکړئ | د الله | نشته دے تاسو له | هيڅوک معبود | سوا د هغهٔ نه | هغهٔ پيدا کړئ تاسو

د الله تعالیٰ عبادت کوئ چه د هغهٔ نه بغير ستاسو بل معبود نشته ، هم هغهٔ تاسو د مزکے نه

مِّنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ۚ

له زمکے نه | او آباد ئے کړئ تاسو | په دے کښے | پس بخښنه غواړئ هغه نه | بيا رجوع کوئ | هغهٔ طرف ته

راپيدا کړی يئ او په دے کښے ئے آباد کړی يئ ، نو د هغهٔ نه معافی غواړئ بيا هغهٔ ته توجه کوئ

إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ ﴿٦١﴾ قَالُوا يَا صَالِحُ قَدْ كُنتَ فِينَا

بيشکه زما رب | نزدے دے | قبلوونکے دے | دوی ووئيل | اے صالحه ! | بيشکه ته وے | په مونږ کښے

بيشکه زما رب هرچا نه نزدے دے او دعا ګانے قبلوونکے دے ، دوی ورته ووئيل چه اے صالحه ! د دے نه وړاندِ تا نه

ع ۵

مَرْجُوًّا قَبْلَ هٰذَآ اَتَنْهٰىنَآ اَنْ نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا

دَ اُمید وړ تو آسره | له دے نه وړاندې | آیا ته موږ منع کوې | چه عبادت وکړو موږ | هغه څه چه عبادت یې کولو | پلارانو زموږ

زموږ ډیر اُمید وته وو ، آیا ته موږ دَ دے دَ عبادت نه منع کوے دَ کومو عبادت چه زموږ پلارانو

وَاِنَّنَا لَفِیْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَیْهِ مُرِیْبٍ ﴿۶۲﴾ قَالَ

او بیشکه موږ | په شک کښے یو | له هغه څه نه | کوم طرف ته چه ته موږ بلے | په لوئ شک کښے | دهٔ وویل

کړے وو، او دَ کومے خبرے طرف ته چه ته موږ رابلے دَ هغے په حقله موږ په ډیر شک کښے پراته یو ـ دهٔ وویل

یٰقَوْمِ اَرَءَیْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَیِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّیْ وَاٰتٰىنِیْ

اے قومه زما! | آیا گورئ تاسو | که چرے زهٔ یم | په یو واضح دلیل باندې | دَ خپل رب له طرفه | او هغهٔ راکړے ما ته

اے زما قومه! داخو ووایئ چه که زهٔ دَ خپل رب دَ طرف نه په یو واضح دلیل قائم یم او هغهٔ په ما

مِنْهُ رَحْمَةً فَمَنْ یَّنْصُرُنِیْ مِنَ اللّٰهِ اِنْ عَصَیْتُهٗ

له خپل طرف نه | رحمت (نبوت) | نو څوک | به زما مدد وکړی (بچ کړی) | دَ الله نه | که چرے | زهٔ دَ هغهٔ نافرمانی وکړم

خپل رحمت هم کړے وی نو څوک به دَ الله تعالیٰ په مقابله کښے زما امداد وکوی که زهٔ دَ هغهٔ نافرمانی وکړم

فَمَا تَزِیْدُوْنَنِیْ غَیْرَ تَخْسِیْرٍ ﴿۶۳﴾ وَیٰقَوْمِ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمْ

پس نهٔ | زیاتوئ تاسو ما دَ پاره | بغیر دَ نقصان نه | او اے زما قومه! | دا | اُوښه ده | دَ الله | تاسو دَ پاره

تاسو خو ماله هم تاوان راکوئ ـ او اے زما قومه! دا دَ الله تعالیٰ اوښه ده چه تاسو دَ پاره

اٰیَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِیْۤ اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ

یوه نخښه | پس پریږدئ دا | چه څرېږی | په زمکه | دَ الله | او مهٔ رسوئ دے ته | (څهٔ) تکلیف

یوه نخښه ده، پس تاسو دا پریږدئ چه دَ الله تعالیٰ ملک کښے آزاده څرېږی او دے ته څهٔ تکلیف مهٔ رسوئ

فَیَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِیْبٌ ﴿۶۴﴾ فَعَقَرُوْهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوْا

پس وُ به نیسی تاسو | عذاب | نزدے (ډیر زر) | نو دوی اُوښه مړه کړه | نو وُئے فرمائیل | نفع واخلئ (دَ ژوند)

گنی یو نزدے عذاب به مو راونیسی ـ په دے باندې هم دوی هغه اُوښه وُوژله نو صالح ؑ وفرمائیل چه په خپلو

فِیْ دَارِكُمْ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ ذٰلِكَ وَعْدٌ غَیْرُ مَكْذُوْبٍ ﴿۶۵﴾ فَلَمَّا

په خپلو کورونو کښے | درے | ورځے | دا | وعده ده | چه دروغ نهٔ ده | پس هر کله چه

کورونو کښے بس درے ورځے نورے تیرے کړئ (یاد سا تئ چه) دا وعده ده چه پکښے بالکل دروغ نشته ـ بیا هر کله چه

جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّیْنَا صٰلِحًا وَّالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا

راغے | زموږ حکم | نو خلاصے ورکړو موږ | صالح ته | او هغو خلقو ته | چه ایمان ئے راوړے وو | دَ هٔ سره | په رحمت | خپل سره

زموږ حکم راغے نو موږ په خپل رحمت سره صالح ؑ له او هغو خلقو له چه دَ دهٔ سره ئے ایمان راوړے وو نجات ورکړو

وَمِنْ خِزْیِ یَوْمِىٕذٍ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْقَوِیُّ الْعَزِیْزُ ﴿۶۶﴾ وَاَخَذَ

او له رسوایئ نه | دَ دغے ورځے | بیشکه | ستا رب | هم هغه دے | زور ور | زبردست | او ونیول

او دَ هغے ورځے دَ رسوایئ نه (مو بچ کړل)، بیشکه ستا رب ډیر قوی او غالب دے ـ یاتے شول ظالمان

الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿۶۷﴾

هغه خلق چه | ظلم ئے وکړو | يو ے (غيبي) چغې | پس دَ سحر ه وودوى | په خپلو كورونو كښې | مړۀ پراتۀ

نو هغوى يو ے (نا ترسے) چغې ونيول، نو په خپلو كورونو كښې دَ سحر په وخت كښې داسے پړمخې پريوتل

كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ؕ اَلَاۤ اِنَّ ثَمُوْدَاۡ كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ؕ اَلَا

لكه چه | دوى هلته وو نه | په دغه ځلئے كښې | واوره! | بيشكه (قوم دَ) ثمود | انكار وكړو | دَ خپل رب | واوره

لكه چه دوى دغلته هيڅ او سيدلى نۀ وو، ياد ساتئ چه ثموديانو دَ خپل رب نه انكار كړے وو، ياد ساتئ

بُعْدًا لِّثَمُوْدَ ﴿۶۸﴾ وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَاۤ اِبْرٰهِيْمَ

لرے والے دِ وى | ثموديانو دَ پاره | او بيشكه | راغلے وے | زمونږ رالېږلے شوى (فرښتے) | ابراهيم ته

چه ثموديان (دَ رحمت نه) ډير لرے وغورزيدل او بيشكه زمونږ فرښتو ابراهيم عليه السلام ته زيرے راوړو

بِالْبُشْرٰى قَالُوْا سَلٰمًا ؕ قَالَ سَلٰمٌ فَمَا لَبِثَ اَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ

په زيرى سره | دوى ووئيل | سلام | دۀ ووئيل | سلام | بيا دۀ وخت تېر نۀ كړو | چه راوړو دۀ | غخے

او ورته ئے ووئيل چه سلامت اوسے، دۀ ووئيل چه تاسو هم سلامت اوسئ نو ساعت تېر نۀ وو چه يو وريت غخے ئے

حَنِيْذٍ ﴿۶۹﴾ فَلَمَّا رَاٰۤ اَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ اِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَاَوْجَسَ

وريت شوے | بيا هر كله چه | دۀ وكتل | دَ دوى لاسونه | چه نۀ رسيږى | هغې ته | نو ګوشكمن شو په دوى | او محسوس كړه (په زړه كښې)

ورله راووبستلو. خو چه داسے وكتل چه دَ دوى لاسونه ورته نۀ ورځى نو شكمن شو او په زړۀ كښې

مِنْهُمْ خِيْفَةً ؕ قَالُوْا لَا تَخَفْ اِنَّاۤ اُرْسِلْنَاۤ اِلٰى قَوْمِ لُوْطٍ ﴿۷۰﴾

له دوى نه | ويره | دوى ووئيل | مۀ وېرېږه | بيشكه مونږ رالېږلے شوى يو | دَ لوط دَ قوم طرف ته

ئے ترے نه ويره وشوه. فرښتو ورته ووئيل چه مۀ وېرېږه مونږ دَ لوط عليه السلام قوم ته رالېږلے شوى يو

وَامْرَاَتُهٗ قَآئِمَةٌ فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنٰهَا بِاِسْحٰقَ ۙ وَمِنْ وَّرَآءِ

او بى بى دَ دۀ | ولاړه وه | پس دے وخندل | نو زيرے وركړو مونږ دے ته | دَ اسحاق | او وروستو

او دَ ابراهيم عليه السلام بى بى ولاړه وه (او دا خبره ئے اوريدله) نو ئے خاندل نو مونږ ورله دَ اسحق (نوم ځوئے) زيرے وركړو او په

اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ ﴿۷۱﴾ قَالَتْ يٰوَيْلَتٰۤى ءَاَلِدُ وَاَنَا عَجُوْزٌ

دَ اسحق نه | دَ يعقوب | دے ووئيل | چه هائے زما كم نصيبه | آيا زۀ به زيږوم | حالانكه زۀ | بوډۍ يم

اسحق پسے دَ (هغۀ ځوئے) يعقوب. دے ووئيل چه هائے زما كم نصيبه زۀ به اوس ځوئے راوړم چه بوډۍ شوم

وَّهٰذَا بَعْلِيْ شَيْخًا ؕ اِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ عَجِيْبٌ ﴿۷۲﴾ قَالُوْۤا اَتَعْجَبِيْنَ

او دا | زما خاوند (هم) | بوډا دے | بيشكه | دا (خو) | خبره ده | عجيبه | دوى ووئيل | آيا تۀ تعجب كوے

او دا زما خاوند هم بوډا دے. دا خو ډيره عجيبه خبره ده، دوى ووئيل آيا تۀ دَ الله تعالىٰ په

مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ رَحْمَتُ اللّٰهِ وَبَرَكٰتُهٗ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ ؕ

دَ الله په كارونو كښې | دَ الله رحمت | او دَ هغۀ بركتونه دِ وى | په تاسو | اے كور والو!

كارونو كښې تعجب كوے. اے دَ دے كور خاوندانو په تاسو دَ الله تعالىٰ رحمت او بركتونه وريږى

إِنَّهُ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ ﴿٧٣﴾ فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرٰهِيمَ الرَّوْعُ وَجَآءَتْهُ

بیشکه هغه | ستائیلے شوے دے | دَ لوئیٔ خاوند دے | پس هر کله چه | لاړه | له ابراهیم نه | ویره | او راغے دهٔ ته

بیشکه هغه دَ تعریف جوګه او دَ لوئے شان خاوند دے۔ نو هر کله چه دَ ابراهیم علیه السلام ویره ختمه شوه او زیرے ورته

الْبُشْرٰى يُجَادِلُنَا فِي قَوْمِ لُوطٍ ﴿٧٤﴾ إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَحَلِيمٌ

زیرے | نو مونږ سره په جګړه شو | دَ لوط دَ قوم په باره کښے | بیشکه | ابراهیم | دَ زغم خاوند

راغلو ، نو مونږ سره ئے دَ لوط دَ قوم په حقله بحث شروع کړو ، بیشکه ابراهیم علیه السلام ډیر حلیم ،

أَوَّاهٌ مُّنِيبٌ ﴿٧٥﴾ يٰٓإِبْرٰهِيمُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَآ

(الله نه) ویریدونکے | (هغهٔ ته) رجوع کوونکے | اے ابراهیمَ ! | مخ واړوه | له دے نه

دَ الله نه ویریدونکے او رجوع کوونکے وو اے ابراهیمَ ! دا خبره پریږده

إِنَّهُ قَدْ جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۚ وَإِنَّهُمْ اٰتِيهِمْ عَذَابٌ

بیشکه راغلے دے | حکم ستا دَ ربّ | او بیشکه په دوی باندِ راتلونکے دے | عذاب

بیشکه ستا دَ رب قطعی حکم شوے دے او په دوی به داسے عذاب ضرور راځی

غَيْرُ مَرْدُودٍ ﴿٧٦﴾ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيٓءَ بِهِمْ

چه نهٔ دے واپس کیدونکے | او هر کله چه | راغلے | زمونږ رالیږلے شوے (فرښتے) | لوط ته | (نو) هغه غمژن شو | په وجه دَ دوی

چه هغه دَ واپس کیدو نهٔ دے۔ او هر کله چه زمونږ فرښتے لوط علیه السلام ته راغلے نو دَ دوی په راتلو خفه شو،

وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَقَالَ هٰذَا يَوْمٌ عَصِيبٌ ﴿٧٧﴾ وَجَآءَهُ

او تنګ شو | له دوی نه | په زړهٔ کښے | او وئے وئیل | (چه) دا (خو) | یوه ورځ ده | دَ مصیبت | او راغلل دهٔ ته

او په زړهٔ ئے بار شو ، او وئے وئیل چه دا ننئ ورځ ډیره سخته ده ، او دَ دهٔ دَ قوم

قَوْمُهُ يُهْرَعُونَ إِلَيْهِ ۖ وَمِنْ قَبْلُ كَانُوا يَعْمَلُونَ السَّيِّاٰتِ ۚ

دَ دهٔ دَ قوم (خلق) | په منډه منډه | دَ دهٔ طرف ته | او له وړاندِ نه | به دوی کول | بد کارونه

خلق په منډه منډه دهٔ ته راغلل ، او دوی لا دَ وړاندِ نه بد کارونه کول.

قَالَ يٰقَوْمِ هٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطْهَرُ لَكُمْ فَاتَّقُوا اللّٰهَ

(لوطؑ) ووئیل | اے زما قومه ! | دا دی | زما لونړه | دوی | ډیرے پاکے دی | تاسو دَ پاره | پس وویریږئ | دَ الله نه

لوط ووئیل اے خلقو ! دا زما لونړه دی ، دا تاسو دَ پاره پاکے دی (دوی سره نکاح وکړئ) دَ الله تعالیٰ نه وویریږئ

وَلَا تُخْزُونِ فِي ضَيْفِي ۖ أَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَّشِيدٌ ﴿٧٨﴾ قَالُوا

او ما رسوا کوئ ما | زما په میلمنو کښے | آیا نشته دے | په تاسو کښے | څوک سړے | په سمه لار روان | دوی ووئیل

او ما په خپلو میلمنو کښے مهٔ رسوا کوئ ، آیا په تاسو کښے سم سړے نشته ـ دوی ووئیل

لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِي بَنَاتِكَ مِنْ حَقٍّ ۚ وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ

بیشکه پوهه یے ته | چه نشته زمونږ | ستا په لونړو کښے | څهٔ | حق (دلچسپی) | او بیشکه ته | ښهٔ پوهیږے

چه تا ته معلومه ده چه ستا دَ لونړو مونږ ته څهٔ ضرورت نشته ـ او تا ته دا هم معلومه ده

مَا نُرِيْدُ ﴿۷۹﴾ قَالَ لَوْ اَنَّ لِىْ بِكُمْ قُوَّةً اَوْ اٰوِىْٓ

موږ چه څهٔ غواړو | دهٔ ووئیل | کاش که (وے) | ماسره | په تاسو باندې | څهٔ طاقت | یا | ما پناه اخستلے وے

چه موږ څهٔ غواړو؟ لوط علیه السلام ووئیل اے کاش! ماسره دَ مقابلے طاقت وے یا ما دَ یوے مضبوطے

اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ ﴿۸۰﴾ قَالُوْا يٰلُوْطُ اِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ

چا ته آ دَر قوم ته | فرښتو ووئیل | اے لوط! | بیشکه موږ | رالیږلے شوی (فرښتے) یو | ستا دَ رب

آسرے سره پناه نیولے وے۔ فرښتو ووئیل اے لوطه! بیشکه موږ ستا دَ رب رالیږلے شوے فرښتے

لَنْ يَّصِلُوْٓا اِلَيْكَ فَاَسْرِ بِاَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ

هیڅ کله به ونهٔ رسیږی دوی | تا ته | پس یوځه | خپل کسان | دَ شپے په څهٔ برخه کښے | او دِ وړوستو دِ نهٔ ګوری

یُو، دوی تا ته نزدے کیدے قدر لهٔ هم نهٔ شی، نو دَ شپے شپے دَ خپل کور خلق وباسه او په تاسو کښے به

مِنْكُمْ اَحَدٌ اِلَّا امْرَاَتَكَ ؕ اِنَّهٗ مُصِيْبُهَا مَآ اَصَابَهُمْ ؕ

له تاسو نه | هیڅوک | سوا | ستا دَ ښځے نه | بیشکه دا | رسیږی به دِے ته | هغه څهٔ چه رسیږی به دوی ته

هیڅوک هم مخ په شا نهٔ ګوری خو (صرف) ستا ښځه هغه به هم په دغه آفت کښے اخته کیږی چه دا نور (ټول) پکښے

اِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ؕ اَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيْبٍ ﴿۸۱﴾ فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا

بیشکه دَ دوی دَ وعدے وخت | صبا دے | آیا نهٔ دے | صبا | نزدے | پس هرکله چه راغے | زموږ حکم

اخته کیږی، دَ دوی دَ پاره ټاکلے وخت صبا دے آیا صبا نزدے نهٔ دے؟ نو هرکله چه زموږ حکم راورسیدو

جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيْلٍ ۙ

نو کړله موږ | برنئی برخه دَ دے (کلی) | دَ لاندِ برخه | او ووروول موږ | په هغے | کانړی | دَ کُنګانړو

نو موږ هغه زمکه لاندِ باندِ کړه، او په هغوی مو پرله پسے دَ کانړو باران

مَّنْضُوْدٍ ﴿۸۲﴾ مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ ؕ وَمَا هِىَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ بِبَعِيْدٍ ﴿۸۳﴾

پرله پسے | نخښه دار | ستا دَ رب په نزد | او نهٔ دے دا (کلی) | دَ ظالمانو نه | څهٔ لرے

وُوَرولو په کومو چه ستا سو دَ رب له طرف نه نخښے لګیدلے وے او دا ځائے دَ دِے ظالمانو نه څهٔ لرے نهٔ دے

ع ۷ ۴۵

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

او مدین ته (مو ولیږلو) | دَ دوی ورور | شعیب | دهٔ ووئیل | اے زما قومه! | عبادت کوئ | دَ الله

او مدین طرف ته مو دَ دوی ورور شعیب ولیږلو دهٔ ووئیل اے زما قومه! دَ الله تعالیٰ عبادت کوئ

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ وَلَا تَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيْزَانَ اِنِّىْٓ

نشته دے تاسو دَ پاره | هیڅ معبود | بے له دهٔ نه | او کمی مهٔ کوه | په ناپ | او تول کښے | بیشکه زهٔ

دَ هغهٔ نه سوا ستاسو بل معبود نشته۔ او په ناپ او تول کښے کمے مهٔ کوئ، بیشکه زهٔ

اَرٰىكُمْ بِخَيْرٍ وَّ اِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيْطٍ ﴿۸۴﴾

وینم تاسو | خوشحاله | او | بیشکه زهٔ ویریږم | په تاسو | له عذاب نه | دَ ورځے راګیرونکے۔

تاسو خوشحاله ګورم او زهٔ ستاسو په حق کښے دَ هغے ورځے دَ عذاب نه ویریږم چه تاسو ټول به راګیر کړی

وَيٰقَوْمِ اَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيْزَانَ بِالْقِسْطِ وَلَا تَبْخَسُوا

او اے زما قومه! | پوره ورکوئ | پیمانه | او تله | په انصاف | او کم مه ورکوئ

اے زما قومه! ناپ او تول په انصاف سره پوره پوره کوئ ، او خلقو ته د هغوی

النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ۝٨٥ بَقِيَّتُ اللّٰهِ

خلقو ته | د دوی شیزونه | او مه گرځئ | په زمکه کښے | فساد کوونکی | باقی بچ شوے | د الله

شیزونه کم مه ورکوئ او د زمکے په مخ فساد مه کوئ ، د الله (په درکړو کښے) بچ شوے

خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۚ وَمَآ اَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ ۝٨٦

بهتر دے تاسو له | که چرے | تاسو یئ | مؤمنان | او نه یم زه | په تاسو باندے | نگهبان

گټه درله (ډیره) بهتره ده که تاسو مؤمنان یئ ۔ او زه څه ستاسو نگران خو مقرر شوے نه یم

قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ

دوی ووئیل | اے شعیبَ! | آیا ستا مونځ | تا ته حکم کوی | چه مونږ پریږدو | هغه څه چه | عبادت به ئے کولو

دوی جواب ورکړو چه اے شعیبَ! آیا ستا دا مونځ تا ته هیله دا تعلیم ښائی چه مونږ د هغه شیزونه پریږدو چه

اٰبَآؤُنَآ اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ؕ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ

پلارانو زمونږ | یا چه | مونږ ونه کړو په خپلو مالونو کښے | څه چه مونږ غواړو | بیشکه ته خو | بُردبار

چه زمونږ پلارانو نیکونو د هغے عبادت کولو ، یا دا پریږدو چه په خپلو مالونو کښے په خپله خوښئ لاس وهو ، واقعی ته خو ډیر هوښیار

الرَّشِيْدُ ۝٨٧ قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ

بنه سرے یئے | ده ووئیل | اے زما قومه! | آیا تاسو وینئ | که چرے زه یم | په یو واضح دلیل باندے

او پوخ دبندار شوے یئے ۔ ده ووئیل چه اے زما قومه! دا خو راته ووایئ چه که زه د خپل رب د طرف نه په

مِّنْ رَّبِّيْ وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ؕ وَمَآ اُرِيْدُ

د خپل رب له طرف نه | او هغه راکړی دی ما ته | د خپل طرف نه | روزی ښه | او زه نه غواړم

څرګند دلیل ولاړ یم (دپیا هم) هغه ماله د خپل طرف نه ښه مال روزی کړے وی او زما دا نیت نه دے چه

اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَآ اَنْهٰىكُمْ عَنْهُ ؕ اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ

چه زه د مخالفت وکړم تاسو سره | د هغے نه چه تاسو ترے منع کوم | زه نه غواړم | مګر | اصلاح

ستاسو خلاف د هغه کار نه په خپله لاس واچوم د کوم نه چه زه تاسو منع کوم ، زه خو ستاسو اصلاح کول غواړم

مَا اسْتَطَعْتُ ؕ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ

تر څو چه ما نه کیدے شی | او نشته زما توفیق | مګر د الله (په مدد) | په هغه | زه توکل کوم | او د هغه طرف ته

تر څو چه ما وس رسی ، او زما چه څه توفیق دے د الله تعالیٰ د طرف نه دے ، په هغه باندے مے توکل دے او په هر معامله

اُنِيْبُ ۝٨٨ وَيٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيْٓ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِّثْلُ مَآ

زه رجوع کوم | او اے زما قومه! | تیار دِ نه کړی تاسو | زما مخالفت | دے نه چه ورسیږی تاسو ته | په مثل د هغه څه

کښے هغه ته مخ کړځوم او اے زما قومه! (هسے نه چه) ما سره دښمنی تاسو تر دے حده ورسوئ چه په هغه

أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَٰلِحٍ ۚ وَمَا قَوْمُ لُوطٍ مِّنكُم

چه رسیدلے وو | قوم دَ نوح | یا قوم دَ هود | یا قوم دَ صالح نه | او نهٔ دے قوم دَ لوط | له تاسو نه

مصیبت اخته شئ لکه دَ نوح قوم یا دَ هود قوم یا دَ صالح قوم چه پرے اخته شوی وو ، او دَ لوط دَ قوم (زمانه او علاقه)

بِبَعِيدٍ ﴿٨٩﴾ وَاسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوٓا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ

لرے | او بخښنه غواړئ | له خپل رب نه | بیا توبه کوئ | دَ هغهٔ طرف ته | بیشکه زما رب | مهربان

تاسو نه لرے نهٔ ده او تاسو دَ خپل رب نه بخښنه غواړئ ، بیا هغهٔ ته رجوع شئ ، زما رب یقیناً رحم کوونکے (او)

وَدُودٌ ﴿٩٠﴾ قَالُوا يَٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا مِّمَّا تَقُولُ وَإِنَّا

محبت کوونکے دے | دوی ووئیل | اے شعیبَ ! | مونږ نهٔ پوهیږو | په ډیرو (خبرو) | هغه چه ته وائے | او بیشکه مونږ

مینه ناک دے ۔ دوی ووئیل اے شعیب ! ځنې چه ته وائے په هغے کښے په اکثرو خبرو مونږ نهٔ پوهیږو او ته

لَنَرَىٰكَ فِينَا ضَعِيفًا ۖ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنَٰكَ ۖ وَمَآ أَنتَ عَلَيْنَا

تا وینو | په خپل مینځ کښے | کمزورے | او که نهٔ وے ستا خاندان | نو تهٔ به مو سنګسار کړے وے | او نهٔ یې ته | په مونږ

مونږ ته په خپل تولی کښے ډیر کمزورے سړے ښکارے او که ستا (د) کورنئ (لحاظ) نهٔ وے نو مونږ به تا او سه سنګسار کړے وے او

بِعَزِيزٍ ﴿٩١﴾ قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَهْطِيٓ أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَٱتَّخَذْتُمُوهُ

غالب | دهٔ ووئیل | اے زما قومه ! | آیا زما خاندان | زیات زورآور دے په تاسو | دَ الله نه | او تاسو غورځولے دے هغه

ته په مونږ غالب نهٔ یې ۔ دهٔ ووئیل چه اے زما قومه ! آیا زما دَ کورنئ (حق) په تاسو دَ الله تعالیٰ نه زیات دے ، حال دا دے چه تاسو هغه

وَرَآءَكُمْ ظِهْرِيًّا ۖ إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٩٢﴾ وَيَٰقَوْمِ

له وروستو دَ شا کانو خپلو | بیشکه زما رب | په هغه څهٔ | چه تاسو کوئ | احاطه کوونکے دے | او اے زما قومه !

هغه هم شا ته پریښے دے ، بیشکه زما رب ستاسو په ټولو کارونو راچاپیره دے ۔ او اے زما قومه !

ٱعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَٰمِلٌ ۖ سَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ

عمل کوئ تاسو | په خپل ځائے باندے | بیشکه زهٔ (هم) عمل کوونکے یم | زر به تاسو ته معلومه شی (چه) | په چا | راځی

تاسو په خپل چال چلیږئ او زهٔ به (په خپل چال) روان یم ۔ زر به درته معلومه شی چه شرمونکے عذاب

عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَمَنْ هُوَ كَٰذِبٌ ۖ وَٱرْتَقِبُوٓا إِنِّي مَعَكُمْ

(هغه) عذاب | چه رسوا به کړی هغه | او هغه څوک | چه هغه دروغژن دے | او تاسو انتظار کوئ | بیشکه زهٔ (هم) | تاسو سره

به په چا راځی ، او څوک دروغژن دے ۔ او تاسو هم انتظار کوئ او زهٔ به هم تاسو

رَقِيبٌ ﴿٩٣﴾ وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا

انتظار کوونکے یم | او هرکله چه | راغے | زمونږ حکم | نو مونږ نجات ورکړو | شعیب ته | او هغه خلقو ته چه | ایمان ئې راوړے وو

سره انتظار کوم ۔ او هرکله چه زمونږ حکم راغے نو شعیب (علیه السلام) او دَ هغهٔ مؤمنان ملګری مو په

مَعَهُۥ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَأَخَذَتِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا ٱلصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا

دَ دهٔ سره | په خپل رحمت سره | او ونیول | ظالمان | (غیبی) چغے | بیا دوی شول دَ صبا

په خپل رحمت سره بچ کړل ، او ظالمان یوے ناترسے چغے راونیول ، نو په خپلو کورونو

فِىْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿٩٤﴾ كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ؕ اَلَا بُعْدًا

په خپلو کورونو کښے | مړه پريوتلي | لکه چه دوی هيڅ اوسيدلی نه ؤو | په هغے کښے | واورئ ! | لرے شول (د رحمت نه)

کښے (داسے) اړولی پريوتل ، لکه چه هيڅ چرے پکښے اوسيدلی نه ؤو ، واورئ ! چه مدين (هم) د

لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُوْدُ ﴿٩٥﴾ ع وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا

مدين (والا) | څنګه چه لرے شوی وو | ثمودیان | او بیشکه | مونږ لیږلے وو | موسیٰ | خپلو نخښو سره

رحمت نه (داسے) لرے شول لکه ثمودیان (چه لرے شوی وو) او مونږ ه موسیٰ علیه السلام د خپلو نخښو او ډېر ګند

وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٩٦﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَاتَّبَعُوْٓا اَمْرَ فِرْعَوْنَ

او په دلیل | روښانه سره | په طرف د فرعون | او د ده د سردارانو | پس دوی پیروی وکړه | د حکم | د فرعون

دلیل سره راولیږلو ، فرعون او د هغه سردارانو ته ، خو هغوی د فرعون په حکم روان وو

وَمَآ اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيْدٍ ﴿٩٧﴾ يَقْدُمُ قَوْمَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَاَوْرَدَهُمُ

او نه وو حکم | د فرعون | په سمه لار | هغه به وړاندے وی | د خپل قوم | په ورځ د قیامت | پس داخل به کړی دوی

او د فرعون حکم (بالکل) درست نه وو ، د قیامت په ورځ به د خپل قوم وړاندے روان وی ، نو دوزخ ته به

النَّارَ ؕ وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُوْدُ ﴿٩٨﴾ وَاُتْبِعُوْا فِىْ هٰذِهٖ لَعْنَةً

اور کښے | او هغه ډېر بد | ځائے دے | د کوزیدو | او دوی پسے شو | په دے (دنیا) کښے | لعنت

ئے ورکوز کړی او هغه ډېر خراب ځائے دے د کوزیدو . او په دے دنیا کښے هم ورپسے لعنتونه دی او د

وَّيَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُوْدُ ﴿٩٩﴾ ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْقُرٰى

او په ورځ | د قیامت (هم) | هغه خراب | انعام دے | چه دوی ته ورکړے شو | دا | خبرونه دی | د هغه کلو

قیامت په ورځ به هم وی ، دغه بدله (د لعنتونو) ډېره خرابه ده . دا د هغه کلو خبرونه دی

نَقُصُّهٗ عَلَيْكَ مِنْهَا قَآئِمٌ وَّحَصِيْدٌ ﴿١٠٠﴾ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ

چه مونږ آوروؤ | تا ته | ځنے له هغے نه | باقی دی | او (ځنے) ختم شوی دی | او مونږ په دوی ظلم نه دے کړے

چه مونږ تا ته آوروؤ ، ځنے کلی لا تراوسه موجود دی او ځنے ختم شوی دی ، او مونږ په هغوی زیاتے نه دے

وَلٰكِنْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَمَآ اَغْنَتْ عَنْهُمْ اٰلِهَتُهُمُ الَّتِىْ يَدْعُوْنَ

لیکن | دوی ظلم وکړو | په خپلو ځانونو | پس په کار رانغلل | د دوی | معبودان د دوی | کوم چه دوی بلل

کړے ، بلکه هغوی پخپله په ځان زیاتے وکړو ، نو هغه معبودان ئے هیڅ په کار رانغلل چه د الله تعالیٰ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَىْءٍ ۚ لَّمَّا جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ ؕ وَمَا زَادُوْهُمْ

سوا د الله نه | هیڅ (هم) | هر کله چه | راغلو | حکم ستا د رب | او دے معبودانو زیات نه کړو دوی ته

نه بغیر به ئے هغوی بلل ، هر کله چه ستا د رب حکم راغے ، او (بلکه) هغوی خوورله

غَيْرَ تَتْبِيْبٍ ﴿١٠١﴾ وَكَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ اِذَآ اَخَذَ الْقُرٰى وَهِىَ

بے له هلاکت نه | او هم دغه شان | نیول دی | ستا د رب | هر کله چه هغه ونیسی | کلی | کله چه هغوی

د هلاکت نه بغیر هیڅ فائده ورنه کړه . او ستا د رب نیول هم داسے وی هر کله چه د کلو خلق راونیسی ، کله چه

ظَالِمَةٌ ؕ اِنَّ اَخْذَهٗۤ اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ ﴿۱۰۲﴾ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّمَنْ

ظالمان دی | بیشکه | دَ هغهٔ نیول | دردناک | (او) سخت دی | بیشکه په دے کښے | نخښنه ده | دَ هغه چا دَپاره

هغوی زیاتے وکړی ، دَ هغهٔ نیول دردناک او سخت دی ، بیشکه په دے کښے دَ هغه چا دَپاره نخښنه پرته

خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ ؕ ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ ۙ لَّهُ النَّاسُ

چه ویریږی | دَ عذاب | دَ اخرت (نه) | دا (داسے) ورځ ده | چه پکښے به جمع کړے شی | خلق

ده چه دَ اخرت دَ عذاب نه ویریږی ، هغه به داسے ورځ وی چه ټول خلق به را ټول کړے شی

وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ﴿۱۰۳﴾ وَمَا نُؤَخِّرُهٗۤ اِلَّا لِاَجَلٍ مَّعْدُوْدٍ ﴿۱۰۴﴾

او دا به (داسے) ورځ وی | چه ټول به پکښے حاضر کړے شی | او دَ وروستو کوو مونږ دَ هغه | مګر | یوے مقرر مودے پورے

دا هغه ورځ ده چه پکښے به ټول (دَ الله په دربار کښے) پیش کولے شی او مونږ خو دوی بس تر یوے ټاکلے مودے پورے وروستو

يَوْمَ يَاْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِىٌّ وَّ

په کومه ورځ چه هغه راشی | خبره به نهٔ کوی | هیڅوک | مګر | دَ هغهٔ په اجازت | پس ځنے له دوی نه | به بد بخت وی | او

کړی دی ، هرکله چه هغه ورځ راشی نو هیڅوک به بغیر دَ الله دَ اجازت نه خبره هم نهٔ شی کولے نو ځنے خلق به بد بخته وی

سَعِيْدٌ ﴿۱۰۵﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ شَقُوْا فَفِى النَّارِ لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ

ځنے نیک بخت | پس کوم خلق چه به | بد بخت وی | نو هغوی به په دوزخ کښے وی | هغوی دَپاره به | په هغے کښے (هلته) | نعرے

او ځنے به نیک بخته وی ، پس هغه خلق چه بد بخته وی په دوزخ کښے به وی ، په هغے کښے به نعرے سورے

وَّشَهِيْقٌ ﴿۱۰۶﴾ ۙ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ اِلَّا

او چغے وی | همیشه به وی | په هغے کښے | ترڅو چه قائم دی | آسمانونه | او زمکه | مګر

وهی په هغے کښے به همیشه پراته وی ، ترڅو چه آسمان او زمکه موجود دی ، مګر

مَا شَآءَ رَبُّكَ ؕ اِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ﴿۱۰۷﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ

څهٔ چه وغواړی | ستا رب | بیشکه ستا رب | کوی | هغه څهٔ چه | هغه غواړی | او کوم | خلق چه

څومره چه ستا پروردګار وغواړی ، بیشکه ستا رب چه څهٔ غواړی کوی ، او څوک چه دَ نصیب خاوندان

سُعِدُوْا فَفِى الْجَنَّةِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ

نیک بخت کړے شول | پس په جنت کښے به وی | همیشه به وی | په هغے کښے | ترڅو چه قائم دی | آسمانونه

دی ، نو هغوی به په جنت کښے وی او همیشه به پکښے مزے کوی ، ترڅو چه آسمانونه او زمکه موجود

وَالْاَرْضُ اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ؕ عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوْذٍ ﴿۱۰۸﴾ فَلَا تَكُ

او زمکه | مګر | څهٔ چه وغواړی | ستا رب | دا ورکړه ده | نهٔ ختمیدونکے | پس مهٔ کیږه ته

دی ، مګر څومره چه ستا رب وغواړی ، دا نهٔ ختمیدونکے ورکړه ده ، نو ته دَ دوی په باره

فِىْ مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هٰۤؤُلَآءِ ؕ مَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا كَمَا يَعْبُدُ

په شک کښے | له هغه څهٔ نه | چه عبادت ئے کوی | دا خلق | دوی عبادت نهٔ کوی | مګر | څنګه چه به عبادت کولو

کښے دَ کومو څیزونو چه دوی عبادت کوی هیڅ شک مهٔ کوه ، دا خلق هغه شان عبادت کوی لکه چه دَ دوی

اٰبَآؤُهُمْ مِّنْ قَبْلُ ؕ وَاِنَّا لَمُوَفُّوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوْصٍ ﴿۱۰۹﴾

دَدوی پلارانو | وړاندې له دوی | او بیشکه مونږ به پوره پوره ورکړو دوی ته | دَدوی برخه | بغیرد کمولو

نه وړاندې دَ دوی پلارانو عبادت کولو، او بیشکه مونږ به دوی ته خپله (دَ عذاب) برخه بغیرد کمولو نه پوره پوره ورکړو

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِ ؕ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ

او بیشکه مونږ ورکړے وو | موسیٰ ته | کتاب | بیا اختلاف وکړے شو | په دے کښے | او که چرے نه وے | یوه خبره

او مونږه موسیٰ علیه السلام ته کتاب ورکړو نو په هغې کښے (هم) اختلاف وکړے شو او که یوه خبره ستا دَ رب له

سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ؕ وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ

وړاندې شوے | ستا دَ رب له طرف نه | نو فیصله به شوې وه | د دوی ترمینځه | او بیشکه دوی | په شک کښے دی | له دے نه

طرف نه وړاندې خلاصه شوے نه وے نو دَ هغوی ترمینځه به (نبځوا) فیصله شوے وه او دوی یقیناً په دے معامله کښے په

مُرِيْبٍ ﴿۱۱۰﴾ وَاِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ اَعْمَالَهُمْ ؕ اِنَّهٗ

په زور شک کښے | او بیشکه | تولو ته | هر کله چه | به ضرور پوره بدله ورکړی | ستا رب | دَ دوی دَ عملونو | بیشکه هغه

شک کښے دی۔ او بیشکه ستا رب به دے تولو ته دَ خپلو عملونو بدله پوره پوره ورکوی ، هغه دَ دوی

بِمَا يَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۱۱﴾ فَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ وَمَنْ تَابَ

څه چه دوی کوی | ښه خبردار دے | پس قائم اوسه ته | څنګه چه تا ته حکم شوے دے | او هغه څوک | چه توبه ئے کړی

په کارونو ښه خبردار دے۔ نو ته (په سمه لاره) قائم اوسه لکه څنګه چه درته حکم شوے دے او هغه خلق هم

مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا ؕ اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۱۱۲﴾ وَلَا تَرْكَنُوْٓا

تا سره | او له حد نه مه تیریږئ | بیشکه هغه | هغه څه ته چه تاسو کوئ | کوری | او مه مائله کیږئ

چه توبه ئے کړے ده او تا سره ملګری دی او سرکشی مه کوئ بیشکه هغه ستاسو کارونه وینی کوری۔ او هغو خلقو ته مه

اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ ۙ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ

دَ هغو طرف ته | کوم چه ظلم وکړو | پس وبه رسیږی تاسو ته | اور | او نشته دے تاسو له | دَ الله نه سوا

مائله کیږئ چه ظالمان دی ګنی تاسو ته به (هم دَ دوزخ) اور ورسیږی، او دَ الله تعالیٰ نه بغیر هیڅوک به هم

مِنْ اَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ

څوک | دوستان | بیا به | تاسو ته مدد نه ملاویږی | او قائم کړه | مونځ | په دواړو طرفونو کښے دَ ورځے

مددګار نه وی او دَ هیڅ اړخ نه به ستاسو امداد نه شی کیدے۔ (اے پیغمبره!) دَ ورځے دواړو غاړو ته او دَ شپے

وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ؕ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ؕ ذٰلِكَ ذِكْرٰى

او په څه برخه کښے | دَ شپے | بیشکه نیکیانے | لرے کوی | بدیانے | دا | نصیحت دے

په څه برخه کښے دَ مونځ پابندی سانته، یقیناً نیکیانے بدئ ختموی ، دا نصیحت دَ منونکو دَ

لِلذّٰكِرِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ وَاصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۱۵﴾

دَ نصیحت قبلونکو دَ پاره | او صبر کوه | پس بیشکه | الله | نه ضائع کوی | اجر | دَ نیکانو

پاره یو (جامع) نصیحت دے۔ او صبر کوه ، الله تعالیٰ هیڅکله دَ نیکانو اجر نه ضائع کوی۔

فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُونِ مِن قَبْلِكُمْ أُولُوا بَقِيَّةٍ يَنْهَوْنَ

پس ولې نه شول | له هغه امتونو نه | چه وړاندې له تاسو نه وو | خاوندان دَ عقل | چه منع کول ئې

نو ولې داسې وُنه شوه چه ستاسو نه په وړومبو امتونو کښې داسې هوښیار خلق موجود وې چه خلق ئې

عَنِ الْفَسَادِ فِي الْأَرْضِ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّنْ أَنجَيْنَا

له فساد کولو نه | په زمکه کښې | مګر | لږ | کوم چه | مونږ نجات ورکړو

په ملک کښې دَ فساد جوړولو نه منع کولې سوا دَ لږ خلقو نه کوم چه مونږ له دوی نه دَ عذاب نه بچ

مِنْهُمْ ۚ وَاتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا مَا أُتْرِفُوا فِيهِ وَكَانُوا

له دوی نه | او پیروی وکړه | هغو خلقو | چه ظالمان وُو | دَ هغه څه چه آسودګي ورکړې شوې وه په هغې کښې | او هغه وُو

کړل ، او کوم خلق چه ظالمان وو هغوی هم په دې خبرو پسې شول په کومو کښې چه عیش او آرام وو، او

مُجْرِمِينَ ﴿١١٦﴾ وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرَىٰ بِظُلْمٍ

مجرمان | او | نه دې | ستا رب (داسې) | چه هلاک کړي | کلي | په ظلم سره

هغوی ګناهګار وو۔ او ستا رب داسې نه دې چه کلي په ناحقه تباه کړي ،

وَأَهْلُهَا مُصْلِحُونَ ﴿١١٧﴾ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ

او خلق دَ هغې | اصلاح کوونکي وي | او که غوښتې | ستا رب | نو خامخا به ئې کړي وو | خلق

په داسې حال کښې چه دَ هغې خلق دَ اصلاح کوشش کوي۔ او که ستا دَ رب مرضي وې نو ټول بنیادم به ئې یو

أُمَّةً وَاحِدَةً ۖ وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ ﴿١١٨﴾ إِلَّا مَن رَّحِمَ

هم یو اُمّت | او همیشه به وي | مختلف | مګر هغه څوک | په کومو چه رحم وکړو

اُمت کړې وُو ، خو دوی به اوس همیشه په اختلاف کښې پراته وي۔ مګر په چا چه ستا رب رحم

رَبُّكَ ۚ وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ ۗ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ

ستا رب | او هم دَ دې دَ پاره | دوی ئې پیدا کړل | او پوره شوه | خبره | ستا دَ رب | چه زه به ضرور ډک کړم

وکړي او هم دَ دې دَ پاره ئې دوی پیدا کړي دي ، او ستا دَ رب دا خبره پوره شوې ده ، چه زه به

جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١١٩﴾ وَكُلًّا نَّقُصُّ

دوزخ | له پیریانو | او انسانانو نه | ټول په یو ځائې | او هر یو (خبر) | مونږ بیانوو

دوزخ دَ پیریانو او دَ بنیادمو نه ډک کړم ، او دَ پیغمبرانو په قصو کښې

عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ ۚ

تا ته | له خبرونو نه | دَ پیغمبرانو | چه مونږ قوي کړو | په هغې سره | ستا زړهٔ

مونږ دا ټولې قصې تا ته (حکم) اوروُو چه ستا زړهٔ پرې مضبوط کړو ،

وَجَاءَكَ فِي هَٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَىٰ

او راغلې ده تا ته | په دې کښې | حقه (خبره) | او نصیحت | او | یادونه

او په دې (قصو) کښې تا ته حق او نصیحت او یادګیرنه دَ مؤمنانو دَ پاره

لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٠٤﴾ وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ

دَ مؤمنانو دَ پاره | او ووایه | هغو خلقو ته | چه ایمان نهٔ راوړی | چه تاسو عمل کوئ | په خپل ځائے

راغلے ده. او څوک چه ایمان نهٔ راوړی هغوی ته ووایه چه تاسو په خپل ځائے عمل کوئ

اِنَّا عٰمِلُوْنَ ﴿١٢١﴾ وَانْتَظِرُوْا ۚ اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿١٢٢﴾ وَلِلّٰهِ

بیشکه مونږ (هم) | عمل کوو | او انتظار کوئ | بیشکه مونږ (هم) | انتظار کوو | او الله دَ پاره دے

مونږ به (په خپل ځائے) عمل کوو او (دَ انجام) انتظار کوئ، مونږ هم انتظار کوو او دَ آسمانونو او

غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاِلَيْهِ يُرْجَعُ الْاَمْرُ كُلُّهٗ

(دَ) غیب (علم) | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او دَ هغهٔ طرف ته | به رجوع کولے شی کارونه | ټول

زمکے غیب هم الله تعالیٰ ته معلوم دی ، او هغهٔ ته به هره خبره واپس کیږی ، نو ته مونږ

فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۭ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٢٣﴾

پس عبادت کوه دَ هغهٔ | او توکل کوه | په هغهٔ | او نهٔ دے رب ستا | بے خبره | له هغه څهٔ نه | چه تاسو کوئ

دَ هغهٔ عبادت کوه او هم په هغهٔ باندے توکل ساته، او ستا رب ستاسو دَ کارونو نه غافله نهٔ دے.

ع ١٠

سُوْرَةُ يُوْسُفَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّ اِحْدٰى عَشْرَةَ اٰيَةً وَّ اثْنَا عَشَرَ رُكُوْعًا

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة یوسف مکی دے او په دے کښے ١١١ آیتونه او دولس رکوع گانے دی

(شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

شروع کوم دَ الله په نوم سره چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

الٓرٰ ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿١﴾ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا

الٓر | دا | آیتونه دی | دَ کتاب | روښانه | بیشکه مونږ نازل کړو دا | قرآن

الٓرٰ دا دَ یو داسے کتاب آیتونه دی چه خپل مطلب صفا صفا ښائی . بیشکه مونږ دا قرآن په عربئ ژبه

عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٢﴾ نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ اَحْسَنَ

په عربئ کښے | چه تاسو | پوهه شئ . | مونږ بیانوو | تا ته | ډیره ښهٔ

کښے نازل کړے دے چه تاسو (پرے) ښهٔ پوهه شئ (اے پیغمبره دَ اسلام) مونږ دِ دے قرآن په ذریعه چه

الْقَصَصِ بِمَآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ هٰذَا الْقُرْاٰنَ ۖ وَاِنْ

قصه | په دے وجه | چه مونږ وحی وکړه | ستا طرف ته | دَ دے | قرآن | او اگرچه

مونږ ستا طرف ته رالیږلے دے ، تا ته یوه ډیره ښهٔ قصه اوروو ، او ته دَ دے

كُنْتَ مِنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ ﴿٣﴾ اِذْ قَالَ يُوْسُفُ

ته وے | له دے نه وړاندے | له بے خبرو نه | هر کله چه ووئیل | یوسف

نه وړاندے یقیناً بے خبره وے . هر کله چه یوسف علیه السلام خپل پلار

لِاَبِيْهِ يٰٓاَبَتِ اِنِّىْ رَاَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ

خپل پلار ته | اے پلاره ! | بیشکه ما ولیدل | یوولس | ستوری | او نمر

ته ووئیل چه اے بابا ! ما یوولس ستوری او نمر او سپوږمئ (په خوب کښے

وَالْقَمَرَ رَاَیْتُهُمْ لِیْ سٰجِدِیْنَ ۝۴ قَالَ یٰبُنَیَّ لَا تَقْصُصْ

او سپوږمئ | ما دوی ولیدل | چه دوی ما ته سجدے کوی | دهٔ ووئیل | اے زما ځویه! | مهٔ بیانوه

ولیدل، څهٔ ګورم چه دا ټول زما په وړاندې ټیټ شوی دی. دهٔ ووئیل اے زما ځویه! دا خوب خپلو

رُءْیَاكَ عَلٰۤی اِخْوَتِكَ فَیَكِیْدُوْا لَكَ كَیْدًا ؕ اِنَّ الشَّیْطٰنَ

خپل خوب | خپلو وروڼو ته | نو جوړ به کړی دوی تا لره چل | بیشکه | شیطان

وروڼو ته مهٔ اوروه، ګنی (دَ ضرر) دَ پاره به درته څهٔ چل جوړ کړی. بیشکه شیطان

لِلْاِنْسَانِ عَدُوٌّ مُّبِیْنٌ ۝۵ وَكَذٰلِكَ یَجْتَبِیْكَ رَبُّكَ وَیُعَلِّمُكَ

دَ انسان | دښمن دے | ښکاره | او همدغه شان | به غوره کړی تا | ستا رب | او وُ به ښائی تاته

دَ انسان ښکاره دُښمن دے. او ستا رب به دغه شان تا غوره کړی، او تاته به دَ

مِنْ تَاْوِیْلِ الْاَحَادِیْثِ وَیُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَیْكَ وَعَلٰۤی اٰلِ یَعْقُوْبَ

تعبیر بیانول | (دَ خوب) دَ خبرو | او پوره به کړی | خپل نعمت | په تا بانډې | او دَ یعقوب په خاندان بانډې

خوبونو دَ خبرو تعبیر و ښائی، او په تا بانډې او دَ یعقوب په خاندان بانډې به خپل نعمتونه پوره کړی

كَمَاۤ اَتَمَّهَا عَلٰۤی اَبَوَیْكَ مِنْ قَبْلُ اِبْرٰهِیْمَ وَاِسْحٰقَ ؕ

لکه چه | پوره کړے ئے وو هغه | ستا په پلار نیکهٔ | له دے نه وړاندې | په ابراهیم | او اسحاق بانډې

لکه څنګه چه هغهٔ له دے نه وړاندې ستا پلار نیکهٔ ابراهیم او اسحاق بانډې پوره کړی وو،

اِنَّ رَبَّكَ عَلِیْمٌ حَكِیْمٌ ۝۶ لَقَدْ كَانَ فِیْ یُوْسُفَ وَاِخْوَتِهٖۤ

بیشکه | ستا رب | پوهه | دَ حکمت خاوند دے | بیشکه دی | په قصه دَ یوسف کښے | او دَ دهٔ دَ وروڼو کښے

بیشکه ستا رب په هر څهٔ پوهه دَ حکمت خاوند دے. بیشکه یوسف علیه السلام او دَ دهٔ دَ وروڼو په قصه

اٰیٰتٌ لِّلسَّآىِٕلِیْنَ ۝۷ اِذْ قَالُوْا لَیُوْسُفُ وَاَخُوْهُ

نخښے | دَ سوال کوونکو دَ پاره | هر کله چه دوی ووئیل | چه ضرور یوسف | او | دَ دهٔ ورور

کښے تپوس کوونکو دَ پاره نخښے دی. څهٔ وخت چه دوی وُوئیل چه یوسف علیه السلام او دَ دهٔ (سکه)

اَحَبُّ اِلٰۤی اَبِیْنَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ ؕ اِنَّ اَبَانَا

زیات خواږهٔ دی | زمونږ پلار ته | له مونږ نه | او | مونږ یو جماعت یُو | بیشکه | زمونږ پلار

ورور زمونږ دَ پلار زمونږ نه زیات خوښ دی، حال دا دے چه مونږ خو پوره یو جماعت یو، بیشکه زمونږ پلار

لَفِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنِ ۝۸ ۖ اقْتُلُوْا یُوْسُفَ اَوِ اطْرَحُوْهُ اَرْضًا

په خطایئی کښے دے | ښکاره | تاسو ووژنئ | یوسف | یا وغورزوئ دے | یو بله زمکه کښے

په ښکاره غلطئ بانډې دے. (راشئ) یوسف ووژنئ یائے چرته یو بل ملک ته وغورزوئ

یَّخْلُ لَكُمْ وَجْهُ اَبِیْكُمْ وَتَكُوْنُوْا مِنْ بَعْدِهٖ قَوْمًا صٰلِحِیْنَ ۝۹

چه خالی شی | تاسو دَ پاره | توجه | دَ پلار ستاسو | او چه شئ تاسو | پس له دے نه | نیکان خلق

دَ پلار مخه به درته یوازے شی، او له دے نه پس به تاسو ډیر ښهٔ شئ

ع ۲ / ۱۱

قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوْا یُوْسُفَ وَاَلْقُوْهُ فِیْ غَیٰبَتِ

دوئیل | یو ویونکی | له دوی نه | چه مه وژنئ | یوسف | او وغورزوئ دے | په تیارهٔ کښے

په هغوی کښے یو تن ووئیل چه یوسف مه وژنئ خو په یو شاړ کوهی کښے

الْجُبِّ یَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّیَّارَةِ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِیْنَ ۝۱۰ قَالُوْا

دَ کوهی | چه اوچت کړی دے | څوک | مسافر | که چرے | یئ تاسو | کوونکی | دوی ووئیل

ئے واچوئ چه څوک مسافر ئے وباسی (او ځان سره ئے بوځی) که تاسو (خامخا) څه کول غواړئ، دوی ووئیل

یٰۤاَبَانَا مَا لَكَ لَا تَاْمَنَّا عَلٰی یُوْسُفَ وَاِنَّا لَهٗ

اے زمونږ پلاره! | څه وشو په تا | چه ته په مونږ اعتبار نهٔ کوے | دَ یوسف په باره کښے | او بیشکه مونږ | دَ دهٔ

اے زمونږ پلاره! دا په تا څهٔ چل دے چه دَ یوسف علیه السلام په حقله په مونږ اعتبار نهٔ کوے، سره دَ دے

لَنٰصِحُوْنَ ۝۱۱ اَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا یَّرْتَعْ وَیَلْعَبْ وَاِنَّا لَهٗ

خیر خواه یو | ته دے ولیږه | مونږ سره | صبا ته | چه دے وخوری | او لوبے وکړی | او بیشکه مونږ | دَ دهٔ

چه مونږ خو دَ هغهٔ خیرخواه یو۔ صباله ئے مونږ سره ولیږه چه وخوری (وځغلی) او لوبے مشغولا وکړی او مونږ

لَحٰفِظُوْنَ ۝۱۲ قَالَ اِنِّیْ لَیَحْزُنُنِیْۤ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ وَاَخَافُ

حفاظت کوونکی یو | (یعقوبؑ) ووئیل | بیشکه ما | غمګین کوی | دا چه تاسو بوځئ دے | او زهٔ ویریږم

دَ دهٔ حفاظت کوو۔ یعقوب علیه السلام ووئیل چه زهٔ په دے خفه یم چه تاسو دے (زمانه) بوځئ او ما سره ویره

اَنْ یَّاْكُلَهُ الذِّئْبُ وَاَنْتُمْ عَنْهُ غٰفِلُوْنَ ۝۱۳ قَالُوْا لَئِنْ اَكَلَهُ

چه وُ به خوری دے | شرمخ | او تاسو به | له دهٔ نه | بے خبره یئ | دوی ووئیل | که چرے وخوری دے

ده چه شرمخ به ئے دے وخوری او تاسو به ترے نه (په خپله مشغولا کښے) غافله شوی یئ۔ دوی ووئیل چه که دے

الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ اِنَّاۤ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ۝۱۴ فَلَمَّا ذَهَبُوْا

شرمخ | او مونږ | یو (طاقتور) جماعت یو | بیشکه مونږ به هغه وخت | نقصان موندونکی یو | بیا هر کله چه | دوی بوتلو

(رانه) شرمخ دخوری او مونږ دومره لوئے ټولے موجود یو نو بیا خو مونږ ډیر غورزیدلی سړی یو، نو هر کله چه

بِهٖ وَاَجْمَعُوْۤا اَنْ یَّجْعَلُوْهُ فِیْ غَیٰبَتِ الْجُبِّ ۚ وَاَوْحَیْنَاۤ اِلَیْهِ

هغه | او دوی اتفاق وکړو | چه واچوی دے | په تیارهٔ کښے | دَ کوهی | او مونږ وحی وکړه | دهٔ ته

هغه ئے بوتلو او پوخ نیت ئے وکړو چه هغه په یو شاړ کوهی کښے واچوی، او مونږ یوسف علیه السلام

لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِاَمْرِهِمْ هٰذَا وَهُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ ۝۱۵ وَجَآءُوْۤ اَبَاهُمْ

چه ضرور به ته خبر ورکړے دوی ته | دَ دوی دَ دے کار | او دوی به پیږنی هم نه | او دوی راغلل | خپل پلار ته

ته وحی وکړه چه یو ورځ به راشی چه ته به دوی ته دا خبره په ګوته کوے او دوی به (هغه وخت هم) پرے نهٔ پوهیږی او دوی خپل پلار ته

عِشَآءً یَّبْكُوْنَ ۝۱۶ قَالُوْا یٰۤاَبَانَاۤ اِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ

دَ ماسختن په وخت | چه ژړل ئے | دوی ووئیل | اے زمونږ پلاره! | مونږ خو | لاړو | چه مخکښے وځو دَ یو بل نه

په ماسختن کښے په ژړا راغلل، وُئے وئیل چه اے زمونږ بابا! مونږ په خپل مینځ کښے دَ منډو مقابله شروع کړه

وَتَرَكْنَا يُوسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَأَكَلَهُ الذِّئْبُ ۚ وَمَآ أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ

او پرېښودو مونږ | يوسف | دَ خپل سامان سره | پس وخوړ هغه | شرمخ | او نهٔ يې ته | يقين کوونکے

او مونږ يوسف دَ خپل سامان سره پرېښودو نو شرمخ (راغلی) او هغه ئے وخوړو او ستا زمونږ په خبره يقين

لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِينَ ﴿۱۷﴾ وَجَآءُوْ عَلٰى قَمِيصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ ۚ

په مونږ | اګرکهٔ | يُو مونږ | رښتيني | او راوړے ئے | دَ پاسه دَ قميص دَ هغه | وينه | دَ دروغو

نهٔ راځی اګرکهٔ مونږ رښتيني يُو ، او دَ هغهٔ په قميص باندِ ئے دَ دروغو وينه لګولے راوړه

قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا ۚ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ ۚ وَاللّٰهُ

وئے فرمايل | بلکه | له ځانه جوړ کړے دے | تاسو دَ پاره | ستاسو زړهٔ نو | يوه خبره | پس صبر | ډير ښهٔ دے | او دَ الله نه

يعقوب عليه السلام ووئيل چه نا بلکهٔ دا تاسو له ځانه يوه خبره جوړه کړے ده ، پس هم صبر غوره دے او تاسو چه

الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُونَ ﴿۱۸﴾ وَجَآءَتْ سَيَّارَةٌ فَأَرْسَلُوْا

مدد غواړم | په هغه څهٔ چه | تاسو ئے بيانوئ | او راغله | يوه قافله | پس دوی ولېږلو

څهٔ وايئ نو په هغې کښې دِ الله زما امداد وکړی ۔ او (دِيل خوا) يوه قافله راغله ، نو دوی خپل يو اوبهٔ راوړونکے

وَارِدَهُمْ فَأَدْلٰى دَلْوَهٗ ۚ قَالَ يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ ۚ

خپل اوبهٔ راوړونکے | پس دهٔ وغورزوله | خپله بوقه | وئے وئيل | اے زيرے دے | دا (خو) | يو هلک دے

ولېږلو دهٔ خپله بوقه ور وغورزوله دهٔ ووئيل چه اے (ملګرو!) زيرے م دربانِدِ دا خو يو کښې هلک

وَأَسَرُّوْهُ بِضَاعَةً ۚ وَاللّٰهُ عَلِيمٌ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَشَرَوْهُ

او دوی ئے پټ کړو | دَ تجارت مال ئے وګنړلو | او الله | ښهٔ پوهه دے | په هغه څهٔ چه دوی کول | او دوی خرڅ کړو دے

راوُختو او هغوی دے دَ تجارت په خيال پټ کړو ، او الله تعالٰی دَ هغوی په ټولو کارونو ښهٔ واقف دو ۔ او هغوی په ډير

بِثَمَنٍ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُوْدَةٍ ۚ وَكَانُوْا فِيهِ مِنَ الزّٰهِدِينَ ﴿۲۰﴾

په قيمت | لږ | په څو درهمو | شميرلے شوو | او دوی وو | دَ دهٔ په باره کښې | بېزاره -

لږ قيمت دَ شمير په يو څو درهمو خرڅ کړو ، او هغوی دَ دهٔ په حقله (هسے هم) بېزاره وو

وَقَالَ الَّذِي اشْتَرٰىهُ مِنْ مِّصْرَ لِامْرَأَتِهٖٓ أَكْرِمِي مَثْوٰىهُ عَسٰٓى

او ووئيل | هغه چا | چه اخستے ئے وو دے | په مصر کښې | خپلے ښځے ته | په عزت سره اوساته دے | کيدے شی

او چا چه (بيا) هغه په مصر کښې واخستو نو خپلے ښځے ته ئے ووئيل چه دَ دهٔ ډير خيال ساته ، کيدے شی

أَنْ يَّنْفَعَنَآ أَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا ۚ وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ

چه دے نفع راکړی مونږ ته | يا مونږ جوړ کړو دے | ځوئے | او دغه شان | مونږ ځائے ورکړو | يوسف ته

چه دے مونږ دَ پاره سُودمند ثابت شی يا مونږ دے په ځوئے ونيسو او دغه شان مونږ يوسف عليه السلام له په دے

فِي الْأَرْضِ ۡ وَلِنُعَلِّمَهٗ مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ ۚ وَاللّٰهُ غَالِبٌ

په زمکه (ملک) کښې | او چه مونږ وښايو دهٔ ته | تعبير بيانول | (دَ خوب) دَ خبرو | او الله | غالب دے

ملک کښې ځائے ورکړو چه مونږ دهٔ ته دَ خوب دَ خبرو تعبير وښايو ، او الله تعالٰی په خپل (هر)

عَلٰٓى اَمۡرِهٖ وَلٰـكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۱﴾ وَلَمَّا بَلَغَ

په خپل (هر) كار كښې | او ليكن | اكثر | خلق | نهٔ پوهيږی - | او هر كله چه | ورسيد و يوسف

كار كښې غالب دے، خو اكثر خلق (په دے) نهٔ پوهيږی - او هر كله چه يوسف عليه السلام

اَشُدَّهٗۤ اٰتَيۡنٰهُ حُكۡمًا وَّعِلۡمًا ؕ وَكَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ ﴿۲۲﴾

خپلے ځوانئ ته | نو وركړو مونږ دهٔ ته | حكمت | او علم | او دغه شان | مونږ بدله وركوو | نيكي كوونكو ته

خپلے ځوانئ ته ورسيد نو مونږ دهٔ ته حكمت او علم وركړو او مونږ هم دغه شان نيكانو له بدله وركوو.

وَرَاوَدَتۡهُ الَّتِىۡ هُوَ فِىۡ بَيۡتِهَا عَنۡ نَّفۡسِهٖ وَغَلَّقَتِ

او غوښتل دے | هغه ښځے | چه دے په كور د هغے كښے وو | د دهٔ د نفس (د حفاظت) نه | او هغے بند كړل

او د كور هغه ښځے كوم كښے چه يوسف عليه السلام اوسيدو، هغے دے خپل طرف ته مائله كول غوښتل او ټول دروازے

الۡاَبۡوَابَ وَقَالَتۡ هَيۡتَ لَكَ ؕ قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ اِنَّهٗ رَبِّىۡۤ

دروازے | او وئے وئيل | دے خوانه راشه | دهٔ وئيل | پناه غواړم د الله | بيشكه هغه | زما مالك دے

ئے بندے كړے او ورته ئے وويل چه راځه، دهٔ ووئيل زهٔ په الله سره پناه غواړم، بيشكه هغه زما مالك

اَحۡسَنَ مَثۡوَاىَ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفۡلِحُ الظّٰلِمُوۡنَ ﴿۲۳﴾ وَلَقَدۡ هَمَّتۡ بِهٖ ۚ

هغهٔ په ښهٔ شان | وساتلم زهٔ | بيشكه | نهٔ كاميابيږی | ظالمان خلق | او بيشكه اراده وكړه ښځے | د دهٔ

دے چا چه زهٔ په ښهٔ شان وساتلم او ظالمان به يقيناً نهٔ كاميابيږی. بيشكه هغه دهٔ ته وړاندې شوه او يوسف

وَهَمَّ بِهَا لَوۡلَاۤ اَنۡ رَّاٰ بُرۡهَانَ رَبِّهٖ ؕ كَذٰلِكَ لِنَصۡرِفَ

او اراده به كړے وه دهٔ | دے ته | كهٔ چرته نهٔ وے كتلے دهٔ | دليل | د خپل رب | دغه شان | چه لرے وساتو مونږ

به هم ورو وړاندے شوے وو كهٔ د خپل رب دليل ئے نهٔ وے ليدلے. داسے حُكم وشو چه مونږ له دهٔ نه

عَنۡهُ السُّوۡٓءَ وَالۡفَحۡشَآءَ ؕ اِنَّهٗ مِنۡ عِبَادِنَا الۡمُخۡلَصِيۡنَ ﴿۲۴﴾

له دهٔ نه | بدى | او بے حيائى | بيشكه دے | زما له بندګانو نه دے | چه خالص كړے شوى دى

بدكارى او بے حيائى لرے وساتو يقيناً دے زمونږ له مخلصانو بندګانو نه دے.

وَاسۡتَبَقَا الۡبَابَ وَقَدَّتۡ قَمِيۡصَهٗ مِنۡ دُبُرٍ وَّاَلۡفَيَا

او دواړو منډے كړے | دروازے ته | او ښځے وشلولو | د دهٔ قميص | له وروستو نه | او بيا موندو دے دواړو

او دواړو دروازے طرف ته منډه كړه او ښځے له وروستو نه د دهٔ قميص وشلولو او دواړو د ښځے خاوند

سَيِّدَهَا لَدَا الۡبَابِ ؕ قَالَتۡ مَا جَزَآءُ مَنۡ اَرَادَ بِاَهۡلِكَ

خاوند د دے ښځے | دروازے سره | دے ووئيل | څهٔ سزا ده | د هغه چا | چه اراده وكړى | ستا ښځے سره

په دروازه (ولاړ) وليدو. ښځے ووئيل چه څوك ستا ښځے سره د بد نيت اراده

سُوۡٓءًا اِلَّاۤ اَنۡ يُّسۡجَنَ اَوۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿۲۵﴾ قَالَ هِىَ رَاوَدَتۡنِىۡ

د بد كار | سوا | له دے نه چه دے قيد كړے شى | يا (وركړے شى) عذاب | دردناك | يوسف ووئيل | دے | وغوښتلم زهٔ

وكړى د هغهٔ سزا د دے نه سوا نور څهٔ كيدے شى چه يا خو دے قيد كړے شى يا ورله دردناكه سزا وركړے شى. يوسف ووئيل دے زهٔ په خپل

عَنْ نَّفْسِیْ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ كَانَ قَمِیْصُهٗ

دَ خپل ځان (دَ حفاظت نه) | او ګواهي ورکړه | یو ګواه | دَ دې له خاندان نه | که چرې وی | دَ ده قمیص

طرف ته مائل کول غوښتلم، او دَ ښځې دَ قبیلې نه یو ګواهي ورکوونکي ګواهي ورکړه که چرې دَ یوسف قمیص دَ

قُدَّ مِنْ قُبُلٍ فَصَدَقَتْ وَهُوَ مِنَ الْكٰذِبِیْنَ ۝۲۶ وَاِنْ

شلیدلې | له مخې نه | نو دا به رښتینې وی | او دے به | له دروغژنو نه وی | او که چرې

وړاندې نه شلیدلې وی نو دا ښځه رښتینې ده او یوسف دروغژن دے۔ او که چرې

كَانَ قَمِیْصُهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ

وی | دَ ده قمیص | شلیدلې | له وروستو نه | نو دا ښځه به دروغژنه وی | او دے به

دَ یوسف قمیص له وروستو نه شلیدلې وی نو دا ښځه دروغژنه ده او یوسف

مِنَ الصّٰدِقِیْنَ ۝۲۷ فَلَمَّا رَاٰ قَمِیْصَهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ اِنَّهٗ

له رښتینو نه وی | بیا هر کله چې ولیدو | دَ ده قمیص | شلیدلې | له وروستو نه | نو ده وویل | بیشکه دا

رښتینې دے۔ بیا هر کله چې خاوند دَ یوسف قمیص دَ وروستو نه شلیدلے ولیدو نو وے ویل چې دا

مِنْ كَیْدِكُنَّ ؕ اِنَّ كَیْدَكُنَّ عَظِیْمٌ ۝۲۸ یُوْسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا

ستاسو دَ ښځو فریب دے | بیشکه | ستاسو فریب | ډیر لوئے دے | اے یوسف! | پریږده | دا خبره

ستاسو دَ ښځو فریب دے بیشکه چې ستاسو فریبونه ډیر لوئے دی۔ اے یوسف! دا خبره شا ته وغورځوه،

وَاسْتَغْفِرِیْ لِذَنْۢبِكِ ۚۖ اِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِـِٕیْنَ ۝۲۹ وَقَالَ نِسْوَةٌ

او معافي وغواړه ته | دَ خپلې ګناه | بیشکه هم ته یې | له خطا کارو نه | او وویل | ښځو

او اے ښځې! ته دَ خپلې ګناه معافي وغواړه، بیشکه هم ته له ګناهګارانو نه یې۔ او په ښار کښې ښځو

فِی الْمَدِیْنَةِ امْرَاَتُ الْعَزِیْزِ تُرَاوِدُ فَتٰىهَا عَنْ نَّفْسِهٖ ۚ

په ښار کښې | چې دَ عزیز (دَ مصر) ښځه | غلول غواړی | خپل غلام | دَ ده دَ نفس (دَ حفاظت نه)

وویل چې (وګورئ!) دَ عزیز ښځه خپل غلام (په ناجائزه) خپل ځان طرف ته مائله کول غواړی

قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ؕ اِنَّا لَنَرٰىهَا فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ۝۳۰ فَلَمَّا سَمِعَتْ

چې راښکیل کړے ئې ده دا | په خپل محبت کښې | بیشکه مونږ خو ګورو دا | په ښکاره ګمراهئ کښې | بیا هر کله چې | واورېدو دے

دَ یوسف محبت (دَ دې په زړه کښې) ځائے نیولے دے بیشکه مونږ دا په ښکاره غلطئ کښې وینو۔ نو هر کله چې هغې دَ نورو

بِمَكْرِهِنَّ اَرْسَلَتْ اِلَیْهِنَّ وَاَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَاً وَّاٰتَتْ

دَ دوی دَ فریب خبرې | نو دې قاصد ولیږلو | دَ دوی طرف ته | او تیار ئې کړو | دوی دَ پاره | یو مجلس (ضیافت) | او ورئې کړه

ښځو دَ مکر نه ډکې خبرې واورېدې نو هغوی ئې (ډوډئ له) راوغوښتلې او هغوئی دَ پاره ئې یو مجلس (ضیافت) تیار کړو او

كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّیْنًا وَّقَالَتِ اخْرُجْ عَلَیْهِنَّ ۚ

هرے یوې ته | له هغوی نه | چاړه | او دې وویل (یوسف ته) | ته راوځه | دَ دوی په وړاندې

هغوئی کښې هر یو له ئې (دَ میوو پریکولو دَ پاره) یوه یوه چاړه ورکړه او یوسف ته ئې وویل چې لږ ورته مخامخ راووځه

فَلَمَّا رَاَيْنَهٗٓ اَكْبَرْنَهٗ وَقَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ

بیاهر کله چه | هغوښځو ولید لو دے | نو حیرانے شوے | او دوی پریکړل | لاسونه خپل | او وے وئیل | پناه ده الله

نو هر کله چه هغوئ (یوسف) ولیدو نو حیرانے پاتے شوے او خپل لاسونه (د حیرت د لاسه) پریکړل او وے وئیل د الله پناه

مَا هٰذَا بَشَرًا ؕ اِنْ هٰذَآ اِلَّا مَلَكٌ كَرِيْمٌ ﴿٣١﴾ قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِىْ

نهٔ دے دا | انسان | نهٔ دے | دا | مګر | فرښته | معززه | دے وئیل | پس هم دا دے هغه چه

دا سړے بشر نهٔ دے، دا خو بس یوه عزتمنده فرښته ده، د عزیز ښځے وئیل دا هم هغه دے

لُمْتُنَّنِىْ فِيْهِ ؕ وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ فَاسْتَعْصَمَ ؕ

تاسو ما ملامته کوئ | په دے کښے | او بیشکه | ما وُغلولو دے | دَده دَ نفس (د حفاظت) نه | نو ده (خپل عزت) بچ کړو

دَ کوم په معامله کښے چه تاسو زهٔ ملامته کولم او بیشکه ما دے خپل ځان ته راګرځولو، خو ده رانه ځان بچ کړو

وَلَئِنْ لَّمْ يَفْعَلْ مَآ اٰمُرُهٗ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُوْنًا مِّنَ الصّٰغِرِيْنَ ﴿٣٢﴾

او که چرے | ونهٔ کړو ده | څهٔ چه زهٔ وایم ده ته | نو ضرور به قید کړے شی دے | او ضرور به وی | دَ ذلیلو خلقو نه

او څهٔ چه زهٔ وایم که چرے ده ونهٔ کړل نو یقیناً به دے قید کړے شی او ډیر بے عزته به شی.

قَالَ رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَىَّ مِمَّا يَدْعُوْنَنِىْٓ اِلَيْهِ ۚ

ده ووئیل | اے زما ربه! | قید خانه | زیاته خوښه ده | ما ته | له هغه څهٔ نه | کوم طرف ته چه دوی ما بلی

یوسف علیه السلام دُعا وکړه چه اے زما ربه! زما قید له دِے نه زیات خوښ دے کوم طرف ته چه دوی ما بلی

وَاِلَّا تَصْرِفْ عَنِّىْ كَيْدَهُنَّ اَصْبُ اِلَيْهِنَّ وَاَكُنْ مِّنَ

او که چرے ته نهٔ لرے کوے | له ما نه | دَ دوی فریب | نو زهٔ به مائله شم | دوی ته | او شم به زهٔ

او که چرے تا دَ دوی مکر و فریب له ما نه منع نهٔ کړو نو زهٔ به دَ دوی طرف ته مائله شم او له جاهلانو نه

الْجٰهِلِيْنَ ﴿٣٣﴾ فَاسْتَجَابَ لَهٗ رَبُّهٗ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ؕ اِنَّهٗ

له جاهلانو نه | پس قبوله کړه | دَ ده (دُعا) | دَ ده رب | پس لرے ئے کړو | له ده نه | دَ هغه (ښځو) مکر | بیشکه

به شم. پس الله تعالیٰ دَ ده دُعا قبوله کړه، او له ده نه ئے دَ دوی مکر و فریب لرے کړو بیشکه

هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٣٤﴾ ثُمَّ بَدَا لَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا رَاَوُا

هم هغه | آورېدونکے | پوهه دے | بیا | ښکاره شوه دوی ته | پس له هغے نه | چه ولیدلے دوی

الله تعالیٰ هره خبره آوری او په هرڅهٔ پوهه دے. بیا هر کله چه دوی ټولے نخښے ولیدلے نو دوی ته هم دا

الْاٰيٰتِ لَيَسْجُنُنَّهٗ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿٣٥﴾ؒ وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ

نخښے | چه دے ضرور قید کښے واچوی | ترڅهٔ موده پورے | او داخل شول | ده سره | په قید خانه کښے

مصلحت ښکاره شو چه تر یوے مودے پورے د (یوسف) په قید کښے واچوی. او ده سره په قید خانه کښے دوه

فَتَيٰنِ ؕ قَالَ اَحَدُهُمَآ اِنِّىْٓ اَرٰىنِىْٓ اَعْصِرُ خَمْرًا ۚ وَقَالَ

دوه ځوانان | ووئیل | یو له دے دواړو نه | بیشکه ما وُکتل | چه زهٔ نچوړوم | شراب | او ووئیل

نور ځوانان داخل شول. په دوی کښے یو ووئیل چه زهٔ خپل ځان (په خوب کښے) ګورم چه شراب نچوړوم او بل

الْاٰخَرُ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ

بل | زهٔ په خوب کښې وينم | چه ما اوچتې کړي دي | په خپل سر باندې | روټۍ | چه خوري | مارغان له هغه نه

دوبل چه زهٔ ګورم چه ما په سر باندې روټۍ اوچتې کړي دي چه مارغان ترې نه (په ټوکو ټوکو) خوراک کوي

نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٣٦﴾ قَالَ

وښايه موږ ته | د دې تعبير | بيشکه موږ ګورو تا ته | له نيکوکارو نه | وئې فرمائيل

موږ ته د دې تعبير وښايه، يقينًا ته موږ ته ښهٔ سړے ښکارې۔ يوسف عليه السلام وفرمائيل

لَا يَاْتِيْكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقٰنِهٖٓ اِلَّا نَبَّاْتُكُمَا بِتَاْوِيْلِهٖ قَبْلَ اَنْ

نهٔ راځي تاسو ته | خوراک | کوم چه تاسو ته درکولے شي | مګر | زهٔ به وښايم تاسو ته | د دې تعبير | وړاندې له دے نه

چه تاسو له به خپل (مقرر) رزق لا نهٔ وي راغلے، چه زهٔ به د دے تعبير تاسو ته د هغے د راتلو نه وړاندې

يَّاْتِيَكُمَا ۭ ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِيْ رَبِّيْ ۭ اِنِّيْ تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ

چه هغه راشي تاسو ته | دا د هغه (علم) نه دے چه | ښودلے دے ما ته | زما رب | بيشکه ما پريښودلو | دين د هغه قوم

بيان کړم، دا په هغې علمونو کښې يو علم دے چه خپل رب ما ته راکړے دے۔ ما د هغو خلقو مذهب پريښے دے

لَّا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿٣٧﴾ وَاتَّبَعْتُ

چه ايمان نهٔ راوړي | په الله | او دوي | د آخرت نه | منکر دي | او ما پيروي وکړه

چه په الله تعالیٰ ايمان نهٔ راوړي، او د آخرت (د ورځے) نه هم انکار کوي۔ او زهٔ د خپل

مِلَّةَ اٰبَآءِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ۭ مَا كَانَ لَنَآ

د دين | د خپلو پلارانو | ابراهيمؑ | او اسحٰقؑ | او يعقوبؑ | نهٔ دي مناسب | موږ له

پلار نيکهٔ ابراهيم، اسحٰق او يعقوب (عليهم السلام) په مذهب چليږم۔ موږ سره دا نهٔ

اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ۭ ذٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عَلَيْنَا

چه موږ شريک کړو | د الله سره | څهٔ څيز | دا دے | فضل د الله | په موږ باندې

ښائي چه موږ د الله تعالیٰ سره څهٔ څيز شريک کړو، دا د الله تعالیٰ په موږ باندې او په ټولو

وَعَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿٣٨﴾ يٰصَاحِبَيِ

او په ټولو خلقو باندې | ليکن | اکثر خلق | شکر نهٔ کوي | اے زما ملګرو!

خلقو باندې فضل دے، ليکن اکثر خلق (د هغهٔ) شکر نهٔ کوي۔ اے زما د قيد خانے

السِّجْنِ ءَاَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُوْنَ خَيْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ

د قيد خانے | آيا معبودان | ګڼ ووړ | بهتر دي | يا الله | يو

ملګرو! آيا جدا جدا ډير معبودان ښهٔ دي يا الله چه يو او زبردست

الْقَهَّارُ ﴿٣٩﴾ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوْهَآ

غالب | تاسو عبادت نهٔ کوئ | د هغهٔ نه سوا | مګر د څو نامو | چه اېښي دي تاسو هغه

دے، تاسو د الله تعالیٰ نه سوا صرف د داسے نومونو عبادت کوئ چه تاسو او ستاسو پلارانو

أَنتُمْ وَآبَآؤُكُم مَّآ أَنزَلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَٰنٍ

ناسو | او ستاسو پلارانو | چه نهٔ دے نازل کړے | الله | په هغې باندې | څهٔ دلیل

دَ هغوئی نه ایښی دی ـ (او) دَ کومو په حق کښې چه الله تعالیٰ هیڅ دلیل نهٔ دے نازل کړے

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۚ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوٓا إِلَّآ إِيَّاهُ ۚ

نهٔ دے حکم (دَ چا) | سوا دَ الله نه | هغهٔ حکم کړے دے | چه عبادت مهٔ کوئ | مګر | هم دَ هغهٔ

حکومت خو بس یوازے دَ الله تعالیٰ حق دے ، هغهٔ دا حکم کړے دے چه بے دَ هغهٔ نه دَ بل چا عبادت مهٔ کوئ

ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ

دا دے | دین | نیغ (برحق) | لیکن | اکثر | خلق

هم دا درست دین دے ، لیکن اکثر خلق پرے

لَا يَعْلَمُونَ ۝٤٠ يَٰصَٰحِبَيِ السِّجْنِ أَمَّآ أَحَدُكُمَا فَيَسْقِي رَبَّهُۥ

نهٔ پوهیږی | اے زما دَ قید خانے ملګرو! | په تاسو دواړو کښے یو | څښوی به | خپل مالک ته

پوهیږی ـ اے زما دَ قید خانے ملګرو! په تاسو کښے به یو خپل مالک ته شراب

خَمْرًا ۖ وَأَمَّا الْآخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَأْكُلُ الطَّيْرُ

شراب | او کوم چه | دویم دے | نو هغه به په سولئ کولے شی | پس خوری به | مارغان

څښوی ، او پاتے شو بل نو هغه به پانسی شی ، او مارغان به ترے نه دَ سر غوښے (په ټونګو)

مِن رَّأْسِهِۦ ۚ قُضِيَ الْأَمْرُ الَّذِي فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ ۝٤١ وَقَالَ

دَ دهٔ له سر نه | فیصله وشوه | دَ هغه کار | دَ کوم په باره کښے | چه تاسو تپوس کوئ | او وئے فرمائیل

تونګو خوری ، دَ هغې خبرے فیصله شوے ده ، دَ کوم په باره کښے چه تاسو تپوس کوئ او په هغو دواړو

لِلَّذِي ظَنَّ أَنَّهُۥ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِي عِندَ رَبِّكَ

هغه کس ته (دَ کوم په نسبت) چه خیال وو | چه هغه به خلاص شی | له دے دواړو نه | زما ذکر وکړه | خپل مالک سره

کښے دَ کوم په نسبت چه یوسف خیال کړے وو چه خلاص به شی هغهٔ ته ئے وفرمائیل چه ته خپل مالک ته زما ذکر وکړه

فَأَنسَىٰهُ الشَّيْطَٰنُ ذِكْرَ رَبِّهِۦ فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِينَ ۝٤٢

پس هیر کړو دَ دهٔ نه | شیطان | ذکر کول خپل مالک ته | پس پاتے شو (یوسف) | په قید خانه کښے | څو | کلونه

خو شیطان دَ هغهٔ نه دَ خپل مالک په وړاندې یادول صفا هیر کړل نو یوسف علیه السلام څو کاله په قید خانه کښے پاتے شو ـ

وَقَالَ الْمَلِكُ إِنِّيٓ أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ

او ووئیل | بادشاه | بیشکه زهٔ | وینم | اووهٔ | غواګانے | څربے | چه خوری دوی

او بادشاه ووئیل چه زهٔ (په خوب کښے) وینم چه اووهٔ څربے غواګانے دی ، دوی لره اووهٔ مانده

سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعَ سُنۢبُلَٰتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَٰتٍ ۖ

اووهٔ (دے) | مانده (غواګانے) | او اووهٔ | وږی | شنهٔ | او نور (اووهٔ) | اوچ

غواګانے خوړی ، او اووهٔ شنهٔ وږی دی او اووه (۷) نور اوچ دی

ع ۵ ۱۵ ۷

يٰۤاَيُّهَا الْمَلَاُ اَفْتُوْنِیْ فِیْ رُءْيَایَ اِنْ كُنْتُمْ لِلرُّءْيَا

اے درباريانو! | مانه تعبير وښايئ | زما د خوب | كه چرے | يئ تاسو | د خوب

اے درباريانو! ماته د دے خوب تعبير وښايئ كه تاسو د خوبونو تعبير ايستے

تَعْبُرُوْنَ ﴿۴۳﴾ قَالُوْۤا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ ۚ وَ مَا نَحْنُ بِتَاْوِيْلِ

تعبير دركوونكي | دوی ووئيل | (دا) پريشانه | خوب دے | او | نهٔ يُو مونږ | په تعبير

شئ - دوی ورته ووئيل چه دا هسے پريشان خوابي ده ، او مونږ د داسے خوبونو په تعبيرونو

الْاَحْلَامِ بِعٰلِمِيْنَ ﴿۴۴﴾ وَقَالَ الَّذِیْ نَجَا مِنْهُمَا وَادَّكَرَ

د خوبونو | عالمان | او ووئيل | هغه كس | چه رها شوے وو | له دے دواړو نه | او ياد راغے هغهٔ ته

نهٔ پوهيږو - او په دواړو (قيديانو) كښے څوک چه رها شوے وو، او ډيره موده پس ورته ياد

بَعْدَ اُمَّةٍ اَنَا اُنَبِّئُكُمْ بِتَاْوِيْلِهٖ فَاَرْسِلُوْنِ ﴿۴۵﴾ يُوْسُفُ اَيُّهَا

ډيره موده پس | زهٔ به وښايم تاسو ته | د دے تعبير | پس ما ولېږئ | اے يوسف! | اے

شول هغهٔ ووئيل چه زهٔ به تاسو ته د دے تعبير وښايم پس ما ولېږئ اے يوسف! اے

الصِّدِّيْقُ اَفْتِنَا فِیْ سَبْعِ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاْكُلُهُنَّ

رښتيا ويونكيه ! | مونږ ته (د خوب تعبير) وښايه | چه اووهٔ | غوا ګانے | څربے | چه خوری دوی لره

رښتينيه ! مونږ ته (د يو خوب) تعبير وښايه چه اووهٔ څربے غوا ګانے دی او (نورے) اووهٔ نرۍ غوا ګانے

سَبْعٌ عِجَافٌ وَّسَبْعِ سُنْۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّاُخَرَ يٰبِسٰتٍ ۙ

اووهٔ | مانده (غوا ګانے) | او اووهٔ | وږی | شنهٔ | او نور (اووهٔ) | اُوچ

يے (لګيادی) خوری او اووهٔ شنهٔ وږی دی ، او (ورسره) نور (اووهٔ) اوچ وږی دی

لَّعَلِّیْۤ اَرْجِعُ اِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۶﴾ قَالَ

چه زهٔ | واپس لاړ شم | د خلقو طرف ته | چه دوی | پوهه شی | وے فرمايئل

چه زهٔ خلقو ته واپس ورشم ، شايد چه هغوی هم پوهه شی - يوسف عليه السلام ووئيل

تَزْرَعُوْنَ سَبْعَ سِنِيْنَ دَاَبًا ۚ فَمَا حَصَدْتُّمْ فَذَرُوْهُ

تاسو به كرۍ كوئ | اووهٔ | كاله | پرله پسے | بيا څهٔ چه | تاسو لو كړئ | نو پرېږدئ هغه

چه تاسو به اووهٔ كاله پرله پسے مزے كرئ ، نو چه كوم فصلونه ورېبئ نو هغه په وږو كښے

فِیْ سُنْۢبُلِهٖۤ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّا تَاْكُلُوْنَ ﴿۴۷﴾ ثُمَّ يَاْتِیْ مِنْۢ بَعْدِ

په خپلو وږو كښے | مګر | لږ | له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے خورئ | بيا به راشی | پس

(پټ) پرېږدئ خو لږ مقدار كوم چه تاسو خورئ (هغه ترے وريږدئ) بيا به ورپسے اووهٔ (د سوكړے)

ذٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَّاْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ

له دے نه | اووهٔ (كاله) | سخت | چه دوی به وخوری | څهٔ چه | تاسو وړاندې نه (جمع كړی) | ايښی دی | د هغه كلونو له

سخت كلونه راشی چه هغه هر څهٔ به وخوری چه تاسو د هغوا نه جمع كړی دی

إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تُحْصِنُونَ ﴿٤٨﴾ ثُمَّ يَأْتِي مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ

سوا دَ لږې (غلې) نه | چه تاسو به ئې بچ کوئ | بیا به راشي | وروستو | له دې نه

مګر لږ مقدار چه تاسو (تخمونوله) ساتلې وي ، بیا به ورپسې داسې کال راشي

عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ﴿٤٩﴾ وَقَالَ

یو (داسې) کال چه په هغه کښې | به باران وي | په خلقو | او په هغه کښې به | دوی (دَ میوو رس) نچوړوي | او وویل

چه په خلقو به ډیر بارانونه ووریږي او هغوی به (دَ انګورو نه) شیرې نچوړوي او بادشاه

الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ ۖ فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ

بادشاه | چه راولئ ما ته هغه | بیا هر کله چه راغې دهٔ ته | قاصد (دَ بادشاه) | یوسفؑ وویل | واپس لاړ شه

وویل چه دا سړے ماله راولئ ، بیا هر کله چه قاصد دهٔ ته راغې نو یوسف علیه السلام وویل چه خپل مالک

إِلَىٰ رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ

خپل مالک ته | پس له هغهٔ نه تپوس وکړه | څهٔ حال دے؟ | دَ هغو ښځو | کوم چه | پرې کړي وُو

ته واپس لاړ شه او دَ هغهٔ نه تپوس وکړه چه دَ هغو ښځو څهٔ معامله ده کوم چه خپل لاسونه

أَيْدِيَهُنَّ ۚ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ ﴿٥٠﴾ قَالَ مَا

خپل لاسونه | بیشکه | زما رب | دَ دوی دَ مکر نه | ښهٔ واقف دے | (بادشاه) وویل | څهٔ

پرې کړي وو بیشکه زما رب دَ هغوئ په فریبونو ښهٔ واقف دے . بادشاه (هغه ښځوته) وویل

خَطْبُكُنَّ إِذْ رَاوَدتُّنَّ يُوسُفَ عَن نَّفْسِهِ ۚ قُلْنَ حَاشَ

حال دے ستاسو | کله چه | تاسو غُلول غوښتل | یوسف | دَ هغهٔ دَ نفس (له حفاظت) نه | دوی وویل | پناه

دا ستاسو څه واقعه وه څهٔ وخت چه تاسو یوسف (علیه السلام) دَ خپل مطلب دَپاره غُلولو؟ هغوی وویل دَ الله تعالی

لِلَّهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِن سُوءٍ ۚ قَالَتِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ

دَ الله | مونږ نهٔ دي معلوم کړي | په هغهٔ کښې | څهٔ بدي | وویل | ښځې | دَ عزیز

پناه مونږ په هغهٔ کښې هیڅ بدي وَنهٔ لیدله ، دَ عزیز ښځې وویل چه اوس

الْآنَ حَصْحَصَ الْحَقُّ أَنَا رَاوَدتُّهُ عَن نَّفْسِهِ

اوس | ښکاره شوه | حقه (خبره) | ما هغه غُلول وغوښتل | دَ هغهٔ دَ نفس (له حفاظت) نه

خو ریښتیا هرچا ته (ښې هم) څرګند شو ، هغه زهٔ وَم چه هغه مې دَ هغهٔ دَ نفس (دَ حفاظت) نه

وَإِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٥١﴾ ذَٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ

او بیشکه هغه | له ریښتیا ویونکو نه دے | دا | دَپاره دَ دے چه دوی پوهه شي | چه بیشکه ما | نهٔ دے

غُلولے وو او هغه بیشکه چه ریښتینے دے (یوسفؑ وویل) دا مې حُکم وکړل چه عزیز ته په ښهٔ شان معلومه شي

أَخُنْهُ بِالْغَيْبِ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي كَيْدَ الْخَائِنِينَ ﴿٥٢﴾

کړے خیانت دَ هغهٔ | پټې شا | او دا چه الله | نهٔ چلوي | فریب | دَ خیانت کوونکو

چه ما دَ هغهٔ نه شا په شا هیڅ خیانت نهٔ دے کړے او الله تعالی دَ خیانت کرو فریبونه هیڅرے سرته نهٔ رسوي .

وَمَآ اُبَرِّئُ نَفْسِيْ ۚ اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْٓءِ

او زهٔ بری نهٔ گڼم | خپل نفس | بیشکه | نفس | ضرور حکم کوونکے دے | دَ بدئ

او زهٔ خپل ځان نه بیښهٔ نهٔ وایم ولے چه نفس خو بنده ته بد ے لار ے چارے ښائی

اِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيْ ؕ اِنَّ رَبِّيْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٥٣﴾ وَقَالَ الْمَلِكُ

مګر په چا چه رحم وکړی | زما رب | بیشکه زما رب | بخښونکے | مهربان دے | او ووئیل | بادشاه

خو په کوم (نفس) چه زما رب رحم وکړی بیشکه زما رب بخښونکے مهربان دے ، او بادشاه ووئیل

ائْتُوْنِيْ بِهٖٓ اَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِيْ ۚ فَلَمَّا كَلَّمَهٗ قَالَ اِنَّكَ

راولئ ماله هغه | چه زهٔ خاص کړم هغه | دَ خپل ذات دَ پاره | بیا هر کله چه | هغه سره ئے خبرے وکړے | ووئیل دهٔ | بیشکه ته

هغه ماله راولئ چه زهٔ ئے خاص خپل کار له وُساتم نو هر کله چه ئے ورسره خبرے وشوے نو ورته ئے ووئیل

الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِيْنٌ اَمِيْنٌ ﴿٥٤﴾ قَالَ اجْعَلْنِيْ

نن ورځ | مونږ سره | عزتمند | امانتدار یئے | (یوسف ع) ووئیل | مقرر کړه ما

چه ته دَ نن نه زما په دلبار کښے عزتمند او معتبر شوے ، یوسف علیه السلام ورته ووئیل چه ما دَ وطن په

عَلٰى خَزَآئِنِ الْاَرْضِ ۚ اِنِّيْ حَفِيْظٌ عَلِيْمٌ ﴿٥٥﴾ وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا

په خزانو | دَ زمکے | بیشکه زهٔ | حفاظت کوونکے | پوهه یم | او دغه شان | مونږ ځائے ورکړو

خزانو باندِ مقرر کړه ، بیشکه زهٔ ډیر ښهٔ محافظ یم او ردَ دے کارنه پوره واقف یم - او دغه شان مونږ یوسف

لِيُوْسُفَ فِي الْاَرْضِ ۚ يَتَبَوَّاُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَآءُ ؕ نُصِيْبُ بِرَحْمَتِنَا

یوسف ته | په زمکه کښے | دے به اُوسیدو | هغه ځائے | کوم ځائے چه | دهٔ غوښتل | مونږ رسوو | خپل رحمت

دَ (مصر دَ) ملک اختیارمند کړو چه کوم ځائے ئے زړهٔ غواړی هلته دِ اُوسیږی ، مونږ چا له چه وغواړو خپل رحمت

مَنْ نَّشَآءُ وَلَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٥٦﴾ وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ

چا ته چه | مونږ غواړو | او مونږ نهٔ ضائع کوو | اجر | دَ نیکانو | او اَجر | دَ آخرت | ډیر ښهٔ دے

رسوو ، او مونږ دَ نیکو خلقو بدله (هیڅ رے) نهٔ ضائع کوو او دَ آخرت بدله ډیره ښهٔ ده

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَجَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ

هغو خلقو دَ پاره | چه ایمان راوړی | او پرهیزګاری ئے کوله | او راغلل | ورونړه | دَ یوسف

هغو کسانو له چه ایمان ئے راوړے وی او پرهیزګار اوسیږی او دَ یوسف علیه السلام ورونړه هم (مصر ته) راغلل

فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿٥٨﴾ وَلَمَّا

پس داخل شول | په دهٔ | پس دهٔ وپیژندل دوی لره | او دوی | هغه | نهٔ پیژندو | او هر کله چه

او تر هغهٔ اورسیدل ، نو هغهٔ وُپیژندل او هغوی دے وُنهٔ پیژندے شو او هر کله چه

جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِاَخٍ لَّكُمْ مِّنْ اَبِيْكُمْ ۚ

هغه تیار کړو دَ دوی دَ پاره | دَ دوی سامان | نو ووئیل دهٔ | راولئ ماله | ورور ستاسو | چه ستاسو دَ پلار نه دے

یوسف علیه السلام هغوی له سامان تیار کړو نو ورته ئے ووئیل تاسو دَ خپل پلار نه (میرنے) ورور هم ماله راولئ

أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ وَأَنَا خَيْرُ الْمُنزِلِينَ ﴿٥٩﴾ فَإِن

آیا نهٔ وینئ تاسو | چه زهٔ پوره ورکوم | پیمانه | او زهٔ | ډیر ښهٔ | میلمستیا ورکونکے یم | بیا که چرے

تاسو نهٔ گورئ چه زهٔ پوره پیمانه ورکوم او ښهٔ پوره میلمستیا ورکوم ، که چرے تاسو

لَّمْ تَأْتُونِي بِهِ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِندِي وَلَا تَقْرَبُونِ ﴿٦٠﴾ قَالُوا

رانهٔ وستلو تاسو ماله | هغه | نو ځهٔ پیمانه (غله) نشته | تاسوله | ماسره | او مهٔ را نزدے کیږئ ماته | دوئیل دوی

ماله رانهٔ وستلو نو تاسو به زما له طرف نه غله نهٔ ملاویږی او نهٔ به زما خوا ته را نزدے کیږئ ، هغوی ورته

سَنُرَاوِدُ عَنْهُ أَبَاهُ وَإِنَّا لَفَاعِلُونَ ﴿٦١﴾ وَقَالَ لِفِتْيَانِهِ اجْعَلُوا

مونږ به خواهش وکړو | د دهٔ په حقله | د دهٔ د پلار نه | او بیشکه مونږ | خامخا دا کار کوونکی یو | او دهٔ ووئیل | خپلو خادمانو ته | چه تاسو کیږدئ

چه مونږ به ئے د پلار نه وغواړو او دا کار به ضرور کوو ۔ یوسف علیه السلام خپلو خادمانو ته ووئیل چه د دوی ا[illegible]

بِضَاعَتَهُمْ فِي رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُونَهَا إِذَا انقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ

د دوئ پیسے | د دوئ په سامان کښے | چه دوی | هغه وپیژنی | هر کله چه دوی واپس شی | خپلو خلقو ته

کړے قیمت د دوئ په سامان کښے (پټ) کیږدئ شاید چه خپلو خپلوانو ته واپس ورسی نو وئے پیژنی ، او

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٦٢﴾ فَلَمَّا رَجَعُوا إِلَىٰ أَبِيهِمْ قَالُوا يَا أَبَانَا

د پاره د دے چه دوی | دوباره راشی | پس هر کله چه | دوئ واپس راغلل | خپل پلار ته | نو دوئے ووئیل | اے زمونږ پلاره

شاید چه په دے وجه واپس راشی ، نو هر کله چه هغوی خپل پلار ته واپس ورسیدل نو دوئے ووئیل چه اے زمونږ پلاره

مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ فَأَرْسِلْ مَعَنَا أَخَانَا نَكْتَلْ

(راشده) بنده کړے شوه له مونږ نه | پیمانه (غله) | پس ولیږه | مونږ سره | زمونږ ورور | چه مونږ پیمانه (غله) راوړو

په مونږ بیا د پاره غله بنده شوے ده ۔ نو زمونږ ورور راسره ولیږه چه غله راوړو

وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴿٦٣﴾ قَالَ هَلْ آمَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَا

او بیشکه مونږ | د دهٔ | حفاظت کوونکی یو | وئے فرمائیل | آیا زهٔ به تاسو اعتبار وکړم | د دهٔ په حقله | مگر | څنګه چه

او مونږ به د هغهٔ ډیر خیال ساتو ۔ یعقوب ووئیل چه آیا زهٔ د دهٔ په حقله په تاسو باندِ هغه شان اعتبار وکړم

أَمِنتُكُمْ عَلَىٰ أَخِيهِ مِن قَبْلُ ۖ فَاللَّهُ خَيْرٌ حَافِظًا ۖ وَهُوَ

ما اعتبار کړے وو په تاسو | د دهٔ د ورور په حقله | له دے نه وړاندِ | پس الله | ډیر ښهٔ | محافظ دے | او هم هغه

لکه چه له دے نه وړاندِ مې د دهٔ د ورور (یوسف) په حقله در باندِ کړے وو ، خو هم الله تعالیٰ ډیر ښهٔ محافظ دے او هغه

أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴿٦٤﴾ وَلَمَّا فَتَحُوا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوا بِضَاعَتَهُمْ

د ټولو نه زیات رحم کوونکے دے | او هر کله | چه دوی پرانستلو | سامان خپل | نو بیا مونده دوی | خپله نغدی

د ټولو نه زیات مهربان دے ۔ او هر کله چه هغوئ خپل سامان پرانستلو نو خپله نغدی ئے بیا مونده کوم

رُدَّتْ إِلَيْهِمْ ۖ قَالُوا يَا أَبَانَا مَا نَبْغِي ۖ هَٰذِهِ بِضَاعَتُنَا

چه واپس کړے شوے وه | دوی ته | دوی ووئیل | اے زمونږه پلاره! | څهٔ غواړو مونږه | دا ده | زمونږ پیسے

چه ورته واپس شوے وه ، هغوئ ووئیل اے بابا! مونږ لا نور څهٔ غواړو؟ دا ده زمونږ نغدی هم

رُدَّتْ إِلَيْنَا ۚ وَنَمِيرُ أَهْلَنَا وَنَحْفَظُ أَخَانَا

واپس کړے شوے دہ | موږ ته | او موږ به غله راوړو | خپلو خلقو دَ پاره | او موږ به حفاظت کوو | دَ ورور خپل

موږ ته واپس شوے ده او موږ به دَ خپل کور والو دَ پاره نوره غله راوړو او دَ خپل ورور حفاظت به کوو

وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ ۖ ذَٰلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ ﴿٦٥﴾ قَالَ لَنْ أُرْسِلَهُ

او موږ به زیاته راوړو | غله | (یو بار) دَ اوښ | دا | پیمانه (غله) | آسانه ده | دے فرمائیل | هیڅ کله به ونهٔ لیږم دے

او دَ یو اوښ بار به زیاتی راوړو ، دا یو اوښ غله به ډیره په آسانه ملاؤ شی ، یعقوب علیه السّلام ووئیل زهٔ به

مَعَكُمْ حَتَّىٰ تُؤْتُونِ مَوْثِقًا مِّنَ اللَّهِ لَتَأْتُنَّنِي بِهِ

تاسو سره | تر دے چه | تاسو راکړئ ما ته | پخه وعده | دَ الله | چه تاسو به خامخا راولئ ما له | دے

هیڅ کله دے تاسو سره ونهٔ لیږم ترڅو چه تاسو ماله دَ الله تعالیٰ په نوم پوخ قول رانهٔ کړئ چه ماله به ئے خامخا واپس راوسوئ

إِلَّا أَن يُحَاطَ بِكُمْ ۖ فَلَمَّا آتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللَّهُ عَلَىٰ

مګر دا چه | راګیر شوئ | تاسو | بیا هر کله چه | دوی ورکړله دهٔ ته | خپله پخه وعده | نو دے فرمائیل | الله | په هغه خبرو

البته دا چه تاسو ټول پخپله چرته راګیر شئ ، نو هر کله چه هغوئ پوخ قول ورکړو نو یعقوبؑ وفرمائیل چه موږ څهٔ

مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ﴿٦٦﴾ وَقَالَ يَا بَنِيَّ لَا تَدْخُلُوا مِن بَابٍ وَاحِدٍ

چه موږ ئے کوو | ضامن دے | او دے ووئیل | اے زما ځامنو! | مهٔ داخلیږئ تاسو | له یوے دروازے نه

وایو الله تعالیٰ دَ دے ضامن دے او هغهٔ ووئیل چه اے زما ځامنو! تاسو هم دَ یوے دروازے نه مهٔ داخلیږئ۔

وَادْخُلُوا مِنْ أَبْوَابٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ۖ وَمَا أُغْنِي عَنكُم مِّنَ اللَّهِ

او داخل شئ | له جدا جدا دروازو نه | او زهٔ نهٔ شم دفع کولے | له تاسو نه | له حکم دَ الله نه

بلکه په جدا جدا دروازو ورننوځئ۔ او زهٔ دَ الله تعالیٰ دَ څهٔ فیصلے نه تاسو بچ کولے

مِن شَيْءٍ ۖ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۖ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖ وَعَلَيْهِ

هیڅ شیز | نشته دے حکم | مګر صرف | دَ الله | هم په دهٔ | ما توکل وکړو | او هم په دهٔ

نهٔ شم ، بے دَ هغهٔ نه دَ بل هیچا حکم نهٔ چلیږی ، په هغهٔ مې توکل دے او څوک چه توکل کوی نو صرف

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُونَ ﴿٦٧﴾ وَلَمَّا دَخَلُوا مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُمْ

توکل پکار دی | توکل کوونکو له | او هر کله چه دوی داخل شول | کوم ځائے نه چه | حکم ورکړے وو دوئ ته | دَ دوی پلار

په هغهٔ دِ توکل کوی ، او هر کله چه هغوی ورننوتل کوم ځائے نه چه دوی نه دَ دوی پلار حکم ورکړے

مَّا كَانَ يُغْنِي عَنْهُم مِّنَ اللَّهِ مِن شَيْءٍ إِلَّا حَاجَةً

دهٔ نهٔ شو بچ کولے | دوی | دَ الله (دَ تقدیر) نه | لږ هم | مګر | یو خواهش وو

وو ، دَ خدائے په مقابله کښے هیڅ تدبیر هم دَ هغوئ په کار راتلے نهٔ شو دا خو دَ یعقوب علیه السلام

فِي نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَاهَا ۚ وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَاهُ

دَ یعقوب په زړه کښے | کوم چه دهٔ پوره کړو | او بیشکه هغه | خاوند دَ علم وو | دَ هغه څهٔ | چه موږ دهٔ ته ښودلے وو

په زړهٔ کښے یو ارمان وو چه هغهٔ پوره کړو او هغه دَ علم خاوند وو ځکه چه موږ ورته علم ورکړے وو۔

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٨﴾ وَلَمَّا دَخَلُوْا عَلٰى يُوْسُفَ

اولیکن | اکثر | خلق | نہ پوهیږی | او هرکله چه | دوی داخل شول | په یوسف

خو اکثر خلق (په دے حقیقت) نهٔ پوهیږی ، او هرکله چه هغوی یوسف علیه السلام ته ورغلل نو هغهٔ

اٰوٰٓى اِلَيْهِ اَخَاهُ قَالَ اِنِّيْٓ اَنَا اَخُوْكَ فَلَا تَبْتَىٕسْ بِمَا

نو دهٔ ځائے ورکړو د خپل ځان سره | خپل ورور ته | دهٔ وویل | بیشکه هم زهٔ | ستاورور یم | پس مهٔ غمژن کیږه | په هغه

خپل سکه ورور له ځان سره ځائے ورکړو او ورته ئے ووئیل چه هم زهٔ ستاورور (یوسف) یم ، نو ته د دوی په کارونو

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٩﴾ فَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ

چه دوی به کول | بیا هرکله چه | تیار کړو دهٔ دوی له | د دوی سامان | نو دهٔ کیښوده | پیاله

مهٔ خفه کیږه . نو هر کله چه ئے د هغوئ سامان تیار کړو نو خپله پیاله ئے د خپل (سکه) ورور

فِيْ رَحْلِ اَخِيْهِ ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ اَيَّتُهَا الْعِيْرُ اِنَّكُمْ لَسٰرِقُوْنَ ﴿٧٠﴾

د خپل ورور په سامان کښے | بیا آواز وکړو | یو آواز کوونکی | اے قافلے والوْ! | بیشکه تاسو | خامخا غلهٔ یئ

په سامان کښے کیښوده ، بیا یو منادی اواز وکړو چه اے د قافلے خلقو! تاسو غلهٔ یئ .

قَالُوْا وَاَقْبَلُوْا عَلَيْهِمْ مَّاذَا تَفْقِدُوْنَ ﴿٧١﴾ قَالُوْا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ

دوی ووئیل | او را مخامخ شول | د دوی طرف ته | څهٔ دی چه تاسو ورک شوی دی؟ | دوی ووئیل مونږ ورک شوے ده | پیمانه | د بادشاه

هغوئ ووئیل او ورپسے (په کلکه) راوړاندِ شول چه تاسو څهٔ ورک شوی دی؟ هغوی ووئیل چه زمونږ نه د بادشاه پیمانه

وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِيْرٍ وَّاَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ ﴿٧٢﴾ قَالُوْا تَاللّٰهِ

او د یارهٔ د هغه چا چه راوړی دا | یو بار د اوښ دے | او زهٔ د دے | ذمه واریم | دوی ووئیل | قسم په الله

ورکه شوے ده او چا چه راپیدا کړه هغهٔ له به د یو اوښ بار (غله) ورکړو او زهٔ د دے (انعام) ذمه واریم هغوی ووئیل د الله قسم

لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِى الْاَرْضِ وَمَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ ﴿٧٣﴾

تاسو ته ښهٔ معلومه ده | مونږ نهٔ یو راغلی | چه مونږ فساد وکړو | په زمکه کښے | او نهٔ مونږ یو | غلهٔ

چه تاسو ته ښهٔ معلومه ده چه مونږ دلته په فساد پسے نهٔ یو راغلی او نهٔ مونږ غلهٔ یو .

قَالُوْا فَمَا جَزَآؤُهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ كٰذِبِيْنَ ﴿٧٤﴾ قَالُوْا جَزَآؤُهٗ

دوی ووئیل | پس څهٔ سزا ده د هغهٔ | کهٔ چرے یئ تاسو | دروغژن | دوی ووئیل | سزا د هغهٔ (دا ده)

هغوی ووئیل کهٔ چرے تاسو دروغژن ثابت شوئ نو بیا به د دے څهٔ سزا وی؟ هغوی ووئیل چه د هغهٔ سزا دا ده

مَنْ وُّجِدَ فِيْ رَحْلِهٖ فَهُوَ جَزَآؤُهٗ ۭ كَذٰلِكَ نَجْزِي

(چه) د چا په سامان کښے هغه (پیمانه) بیا موندے شوه | پس هم هغه (سړے) | د دے بدله ده | د غه شان | مونږ سزا ورکوو

چه د چا په سامان کښے پیمانه راوُختهٔ نو هغه تن دِ په خپله د ځان په بدله کښے ایسار کړے شی ، مونږ مجرمانو له هم دغه

الظّٰلِمِيْنَ ﴿٧٥﴾ فَبَدَاَ بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَاۗءِ اَخِيْهِ ثُمَّ

ظالمانو ته | پس شروع کړه (تلاشی) | د دوی د سامانونو | وړومبے | د خپل ورور د سامان نه | بیا

شان سزا ورکوو ، نو د خپل ورور د بوری نه وړاندِ ئے د هغوئ د بورو (تلاشی) شروع کړه ، بیائے

اسْتَخْرَجَهَا مِنْ وِعَاءِ أَخِيهِ ۚ كَذَٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ ۖ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ

دَ ورور دَ بوری نه | دغه شان | مونږ تدبير وکړو | يوسف دَ پاره | دَه نه شو اخستے | دَخپل ورور

بیا ئې دا (سکه) دَ ورور دَ بورۍ نه (پیالۍ) راؤښکله، دغه شان مونږ یوسفؑ دَ پاره تدبیر وکړو، هغه خپل ورور دَ بادشاه

أَخَاهُ فِي دِينِ الْمَلِكِ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ ۚ نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَنْ

خپل ورور | دَ هغه بادشاه دَ قانون مطابق | مګر دا چه | دَ غواړی | الله | مونږ وچتوو | درجے | دَ چا چه

(معبر) په قانون کښے اخستے نه شو، مګر دا چه هم الله تعالیٰ منظور وه، مونږ چه دَ چا وغواړو، درجے ئے

نَشَاءُ ۗ وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ ﴿٧٦﴾ قَالُوا إِنْ يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ

مونږ وغواړو | او دَ پاسه | دَ هر خاوند دَ علم | يو لوئے علم والا دے | دوی وویل | که چرے دَه غلا کړے ده | نو غلا کړے ده

وچتے کړو، او دَ هر عالم دَ پاسه بل لوئے عالم شته. هغوی وویل که (دَ) دَه غلا وکړه نو بخوا دَ دَه سکه

أَخٌ لَهُ مِنْ قَبْلُ ۚ فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ ۚ

دَ دَه ورور هم | له دے نه وړاندې | پس پټه وساتله دا | يوسف | په خپل زړه کښے | او ښکاره ئے نه کړه | دوی ته

ورور هم غلا کړے وه، نو یوسف علیه السلام دا خبره په زړه کښے واچوله، او هغوی ته ئے ښکاره نه کړه

قَالَ أَنْتُمْ شَرٌّ مَكَانًا ۖ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ ﴿٧٧﴾ قَالُوا

ئے وویل (زړه کښے) | تاسو | ډیر بد یئ | په درجه کښے | او الله | ښه پوهه دے | په هغه څه چه تاسو ئے بیانوئ | دوی وویل

ورته ئے وویل چه تاسو ډیر خراب خلق یئ او څه چه تاسو بیانوئ الله تعالیٰ په هغے ښه پوهه دے. هغوی وویل

يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ إِنَّ لَهُ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا فَخُذْ أَحَدَنَا مَكَانَهُ ۖ

اے عزیز! | بیشکه دَ دَه | پلار دے | بوډا | دَ ډیر عمر | پس ونیسه | یو له مونږ نه | دَ دَه په ځائے

اے عزیز! بیشکه دَ دَه پلار ډیر بوډا دے، نو دَ دَه په ځائے مونږ کښے یو تن ونیسه

إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٧٨﴾ قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ أَنْ نَأْخُذَ إِلَّا مَنْ

بیشکه مونږ وینو تا | له نیکانو نه | دَه وویل | دَ الله پناه غواړم | چه زه دِ ونیسم | سوا دَ دَه نه

مونږ دِ وینو ګورو چه ته ډیر ښه سړے یئے. هغه وویل دَ الله تعالیٰ پناه چه بل څوک را ونیسم خو بس هغه

وَجَدْنَا مَتَاعَنَا عِنْدَهُ إِنَّا إِذًا لَظَالِمُونَ ﴿٧٩﴾ فَلَمَّا اسْتَيْأَسُوا

چه موندلے دے مونږ | خپل سامان | دَ دَه سره | بیشکه مونږ به | هغه وخت | خامخا ظالمان یو | بیا هر کله چه | نا امیده شول دوی

څوک چه ورسره مو خپل څیز موندلے دے کنی نو بیا خو به مونږ په ظالمانو کښے شمیر شو نو هر کله چه دوی دَ هغه (یوسفؑ)

مِنْهُ خَلَصُوا نَجِيًّا ۖ قَالَ كَبِيرُهُمْ أَلَمْ تَعْلَمُوا أَنَّ أَبَاكُمْ

له هغهٔ نه | نو ځان له شول دوی | مشورے دَ پاره | وویل | مشر دَ دوی | آیا نه | پوهیږئ تاسو | چه ستاسو پلار

نه مایوسه شول نو دَ مشورے دَ پاره ځان له شول، په دوی کښے مشر وویل چه آیا تاسو نه معلومه نه ده چه پلار

قَدْ أَخَذَ عَلَيْكُمْ مَوْثِقًا مِنَ اللَّهِ وَمِنْ قَبْلُ مَا فَرَّطْتُمْ فِي يُوسُفَ ۖ

اخستے وه | له تاسو نه | پخه وعده | دَ الله | او له دے نه وړاندې | چه قصور دے کړے تاسو | دَ یوسف په حقله

درنه په قسمونو پوخ لوظ اخستے وو او له دے نه وړاندې تاسو دَ یوسف په حقله هم تصور کړے دے

فَلَنْ اَبْرَحَ الْاَرْضَ حَتّٰى يَاْذَنَ لِيْۤ اَبِيْۤ اَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ لِيْ ۚ

پس زۀ به هیڅکله نۀ پریږدم | دا زمکه | ترهغه وخته پورې چه | اجازت راکړی مانته | زما پلار | یا فیصله وکړی | الله ما دپاره

نو زۀ خو دا ملک نۀ پریږدم ترڅو چه پلار دا نه اجازت رانۀ کړی یا الله زما په حقله فیصله ونۀ کړی

وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ۝٨٠ اِرْجِعُوْۤا اِلٰۤى اَبِيْكُمْ فَقُوْلُوْا يٰۤاَبَانَاۤ

او هغه | د ټولو نه ښۀ | فیصله کوونکے دے | تاسو واپس لاړ شئ | خپل پلار ته | پس ووایئ | اے زمونږ بابا

او هم هغه ډیر ښۀ فیصله کوونکے دے۔ تاسو خپل پلار ته پسته لاړ شئ نو ورته ووایئ چه اے بابا!

اِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ ۚ وَمَا شَهِدْنَاۤ اِلَّا بِمَا عَلِمْنَا وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ

بیشکه ستا ځوئ | غلا وکړه | او مونږ ګواهی ورنۀ کړه | مګر | څۀ چه مونږ ته معلوم وو | او مونږ نۀ وو | د غیبو

ستا ځوئ غلا کړے دۀ ، او مونږ د خپل علم مطابق ګواهی ورکړے ده ، او مونږ ته د غیبو هیڅ

حٰفِظِيْنَ ۝٨١ وَسْئَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا وَالْعِيْرَ

حفاظت کوونکی | او تپوس وکړه | د کلی (د خلقو) نه | چه وو مونږ په هغې کښې | او له هغه قافلے نه

خبر نۀ وو او په کوم کلی کښې چه مونږ دېره وو د هغه ځائے د خلقو نه تپوس وکړه او د هغې قافلے والو نه

الَّتِيْۤ اَقْبَلْنَا فِيْهَا ۭ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ۝٨٢ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ

چه مونږ راغلو په هغې کښې | او بیشکه مونږ | رښتینی یو | (یعقوبؑ) ووئیل | (نا) بلکه | بنائسته کړے دے | تاسو دپاره

چه مونږ ورسره (په ملګرتیا کښې) راغلی یو او مونږ بالکل رښتینی یو ـ یعقوب علیه السلام ووئیل تا بلکه دا خو تاسو ته

اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۭ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۭ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِيْ بِهِمْ جَمِيْعًا ۭ

زړونو ستاسو | یو کار | پس (هم) صبر ډیر ښۀ دے | اُمید دے | چه الله به | راولی مانته | دوی ټول

خپلو نفسونو یوه خبره بنائسته کړے ده نو هم صبر ډیر ښۀ دے، کیدے شی چه الله تعالیٰ دا ټول ما ته واپس راولی

اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ۝٨٣ وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰۤاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ

بیشکه هم هغه | پوهه | د حکمت خاوند دے | او مخ ئے واړولو | له دوی نه | او وئے وئیل | هائے افسوس! | په یوسف باندې

هغه په هر څۀ پوهه د حکمت خاوند دے او یعقوبؑ د هغوی نه مخ واړولو او وئے وئیل چه هائے افسوس! په یوسف

وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيْمٌ ۝٨٤ قَالُوْا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا

او سپینے شولے | دواړه سترګے د دۀ | له غم نه | او هغه | ډیر خفه دلګیر وو | دوی ووئیل | قسم په الله | تۀ خو همیشه

باندې او د غم نه (په ژړا ژړا) ئے سترګے سپینے شوے او هغه به خفه دلګیر (ناست) وو ځامنو ئے ووئیل د الله قسم تۀ به

تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ ۝٨٥

یادوے | یوسف | تر دے چه | تۀ شے | بیمار | یا شے ته | له هلاکیدونکو نه

تل د یوسفؑ په یاد کښې اخته یې، تر دے چه ځان به ورپسے رنځور کړے یا به هلاک مړ شے ـ

قَالَ اِنَّمَاۤ اَشْكُوْا بَثِّيْ وَحُزْنِيْۤ اِلَى اللّٰهِ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ

دۀ ووئیل | بیشکه چه | زۀ بیانوم | خپل خفګان | او خپل غم | الله ته | او زۀ پوهیږم | د الله د طرف نه

هغۀ ووئیل چه زۀ خو صرف د الله تعالیٰ په وړاندې خپله بے قراری او خپل غم بیانوم او زۀ د الله تعالیٰ د طرف نه په هغو

مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٨٦﴾ يٰبَنِيَّ اذْهَبُوا فَتَحَسَّسُوا مِن يُوسُفَ وَأَخِيهِ

هغه څه چه تاسو نه پوهیږئ | ای زما ځامنو! | لاړ شئ | پس لټون وکړئ | د یوسف | او د ده د ورور

پوهیږم چه تاسو پرې نه پوهیږئ. ای زما ځامنو! ځئ لاړ شئ او د یوسف او د هغه د ورور (بنیامین) لټون

وَلَا تَايْـَٔسُوا مِن رَّوْحِ اللّٰهِ ۖ إِنَّهُ لَا يَايْـَٔسُ مِن رَّوْحِ اللّٰهِ إِلَّا

او نا امیده کیږئ | د الله د رحمت نه | بیشکه چه نه نا امیده کیږي | د الله د رحمت نه | مګر

وکړئ او د الله تعالی د رحمت نه مه مایوسه کیږئ، د الله تعالی د رحمت نه خو صرف کافران خلق

الْقَوْمُ الْكٰفِرُونَ ﴿٨٧﴾ فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَيْهِ قَالُوا يٰأَيُّهَا الْعَزِيزُ

قوم | د کافرانو | بیا هر کله چه دوی داخل شول | د هغه په وړاندې | نو ووئیل | ای عزیزه!

مایوسه کیږي — بیا چه هغوئ یوسف علیه السلام ته ورغلل نو ورته ووئیل چه ای عزیزه! مونږ ته او زمونږ

مَسَّنَا وَأَهْلَنَا الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضٰعَةٍ مُّزْجٰىةٍ فَأَوْفِ لَنَا

رسیدلې مونږ ته | او زمونږ د کور خلقو ته | تکلیف | او مونږ راوړې ده | سرمایه | معمولي | پس پوره راکړه | مونږ ته

د کور خلقو ته ډیر تکلیف رسیدلے دے او مونږ څه لږ شان معمولي سرمایه راوړې ده نو مونږ له (د غلې) پوره

الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا ۖ إِنَّ اللّٰهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ ﴿٨٨﴾ قَالَ

پیمانه (غله) | او خیرات وکړه | په مونږ ده | بیشکه الله | جزا ورکوي | خیرات ورکوونکو ته | ده ووئیل

پیمانه راکړه او په مونږ خیرات وکړه، بیشکه الله تعالی صدقه ورکوونکو ته جزا ورکوي — یوسف علیه السلام

هَلْ عَلِمْتُم مَّا فَعَلْتُم بِيُوسُفَ وَأَخِيهِ إِذْ أَنتُمْ جٰهِلُونَ ﴿٨٩﴾

آیا تاسو ته معلومه ده؟ | څه چه | وکړل تاسو | یوسف | او د ده د ورور سره | هر کله چه تاسو | نا پوهه یئ

تپوس وکړو آیا تاسو ته معلومه ده چه د ناپوهئ په زمانه کښې تاسو یوسف او د ده د ورور سره څه سلوک کړے دے

قَالُوا أَءِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ ۖ قَالَ أَنَا يُوسُفُ وَهٰذَا أَخِي

دوی ووئیل | آیا بیشکه ته | هم ته یې | یوسف | ده ووئیل | (هو) هم زه یوسف یم | او دا زما ورور دے

هغوئ ووئیل آیا هم ته یوسف یې؟ ده ووئیل هو! هم زه یوسف یم، او دا زما ورور دے

قَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا ۖ إِنَّهُ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيعُ

احسان کړے دے | الله | په مونږ باندې | بیشکه | څوک چه پرهیزګاري کوي | او صبر کوي | نو بیشکه الله | نه ضائع کوي

په مونږ باندې الله تعالی احسان کړے دے، یقینًا څوک چه (الله) نه ویریږي او صبر کوي، نو بیشکه الله تعالی د (داسې

أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٠﴾ قَالُوا تَاللّٰهِ لَقَدْ آثَرَكَ اللّٰهُ عَلَيْنَا

اجر | د نیکانو | دوی ووئیل | قسم په الله | بیشکه فضیلت درکړے دے تا ته | الله | په مونږ باندې

نیکانو خلقو اجر نه ضائع کوي - هغوئ ووئیل د الله قسم! الله تعالی تا له په مونږ باندې فضیلت درکړے دے

وَإِن كُنَّا لَخٰطِئِينَ ﴿٩١﴾ قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ ۖ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكُمْ

او هم مونږ خطا کار وو | ده ووئیل | هیڅ الزام نشته | په تاسو | نن ورځ | معاف دې کړي الله | تاسو

او بیشکه هم مونږ خطا کار وو - یوسف علیه السلام ورته ووئیل نن په تاسو هیڅ الزام نشته الله تعالی دې تاسو معاف کړي

وَهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۹۲﴾ اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ عَلٰى وَجْهِ

او هغه | دَ ټولو نه زیات رحم کوونکے دے | یوسځئ | زما قمیص | دا | پس دروا چوئ دا | په مخ

او هغه دَ ټولو نه زیات مهربانه دے ۔ (اوس) تاسو دا زما قمیص یوسځئ، نو زما دَ پلار په مخ

اَبِيْ يَاْتِ بَصِيْرًا ۚ وَاْتُوْنِيْ بِاَهْلِكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۹۳﴾ وَلَمَّا

دَ پلار زما | هغه به شي | بینا | او راولئ ماله | خپل کورِ والا | ټول | او هرکله چه

واچوئ دَ هغهٔ سترګے به روښانه شي او ماله خپل ټول خاندان دلته راولئ ، او هرکله چه

فَصَلَتِ الْعِيْرُ قَالَ اَبُوْهُمْ اِنِّيْ لَاَجِدُ رِيْحَ يُوْسُفَ لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ ﴿۹۴﴾

روانه شوه | قافله | نو وویل | دَ دوی پلار | بیشکه زهٔ بیا موم | بوئیں | دَ یوسف | که تاسو مِ بے ځبه وُنهٔ بولئ

قافله روانه شوه نو هغوئ پلار ووئیل چه دَ یوسف بوئیں را بانږ ولګیدو خو هسے نه چه تاسو را ته لیونے ووایئ

قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّكَ لَفِيْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ ﴿۹۵﴾ فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ

دوی ووئیل | دَ الله قسم | بیشکه ته | په خپله پخوانئ خطا یئ کښے یئے | بیا هرکله | چه راغے | زیرے ورکوونکے

هغوی ووئیل دَ الله قسم بیشکه ته په خپل پخوانی وهم کښے یئے ۔ بیا چه زیرے ورکوونکے راغے

اَلْقٰىهُ عَلٰى وَجْهِهٖ فَارْتَدَّ بَصِيْرًا ۚ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ

نو واچولو دهٔ (قمیص) | په مخ دَ دهٔ | نو شولو دے | بینا | وئے وئیل | آیا مانهٔ وو وئیلی | تاسو ته

او هغه قمیص ئے دَ هغهٔ په مخ واچولو نو بیائے سترګے روښانه شولے ۔ یعقوب علیه السلام ووئیل آیا ما تاسو ته نهٔ وو وئیلی

اِنِّيْٓ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۹۶﴾ قَالُوْا يٰٓاَبَانَا اسْتَغْفِرْ

بیشکه زهٔ | پوهیږم | دَ الله دَ طرف نه | په هغه څه | چه تاسو پرے نه پوهیږئ | دوی ووئیل | اے زمونږ پلاره! | بخښنه وغواړه

بیشکه ما ته دَ الله دَ طرف نه هغه خبرے معلوم دی چه تاسو ته نهٔ دی معلوم هغوئ ووئیل اے بابا! مونږ خطا کار

لَنَا ذُنُوْبَنَآ اِنَّا كُنَّا خٰطِـِٕيْنَ ﴿۹۷﴾ قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ

مونږ دَ پاره | زمونږ دَ ګناهونو | بیشکه مونږ وو | ګناهګاران | دهٔ ووئیل | زر به | زهٔ بخښنه وغواړم | تاسو دَ پاره

یو ، مونږ دَ پاره زمونږ دَ ګناهونو بخښنه وغواړه ، وئے فرمائیل ، ډیر زر به دَ خپل رب نه تاسو دَ پاره بخښنه

رَبِّيْ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۹۸﴾ فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلٰى يُوْسُفَ اٰوٰٓى

دَ خپل رب نه | بیشکه هغه | بخښونکے | مهربان دے | بیا هرکله | چه دوی داخل شول | په یوسف | نو ځائے ورکړو دهٔ

وغواړم ، بیشکه هغه بخښونکے رحم کوونکے دے ، بیا چه دوئ ټول یوسف له ورسیدل نو هغهٔ مور او پلار

اِلَيْهِ اَبَوَيْهِ وَقَالَ ادْخُلُوْا مِصْرَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ ﴿۹۹﴾ وَرَفَعَ

خپل ځان سره | خپل مور پلار ته | او وئے وئیل | داخل شئ | په مصر کښے | که چرے الله وغوښتل | په امن سره | او اوچت کښینول دهٔ

ځان سره کښینول او وئے وئیل تول په مصر کښے داخل شئ که الله تعالی ته منظوره وی نو په امن به وسیږئ او خپل

اَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا ۚ وَقَالَ يٰٓاَبَتِ

خپل مور او پلار | په تخت باندِ | او پریوتل دوی | دَ دهٔ په وړاندِ | په سجده | او دهٔ ووئیل | اے زما پلاره

مور پلار ئے په شاهي تخت باندِ کښینول او ټول یوسف ته په سجده پریوتل ۔ او یوسف ووئیل اے زما پلاره

هٰذَا تَأْوِيلُ رُءْيَايَ مِن قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا ؕ

دا دے | تعبیر | زما دَ خوب | له دے نه وړاندې | بیشکه کړو دا | زما ربّ | ربښتیا

دا زما دَ خوب تعبیر دے چه ما وړاندې لیدلے وو ، هغه (خوب) زما رب ربښتیا کړو ، او

وَقَدْ أَحْسَنَ بِي إِذْ أَخْرَجَنِي مِنَ السِّجْنِ وَجَاءَ بِكُم مِّنَ الْبَدْوِ

او هغهٔ احسان وکړو | په ما | هرکله چه زهٔ ئے راوویستلم | له قید خانے نه | او راوئے وستلئ تاسو | له صحرا نه

هغهٔ (دا څومره) احسان وکړو چه دَ جیل نه ئے راوویستلم او تاسو ټول ئے دَ کلی نه (دلته) راوستی

مِن بَعْدِ أَن نَّزَغَ الشَّيْطَانُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِي ؕ إِنَّ رَبِّي

پس له هغے نه چه | فساد واچولو | شیطان | په مینځ زما | او په مینځ زما دَ ورونړو کښے | بیشکه | زما رب

پس له دے نه چه شیطان زما او زما دَ ورونړو په مینځ کښے فساد اچولے وو ، بیشکه زما رب

لَطِيفٌ لِّمَا يَشَاءُ ؕ إِنَّهُ هُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ۝١٠٠ رَبِّ

ښهٔ تدبیر کوونکے دے | چا دَ پاره چه | هغه وغواړی | بیشکه هغه | پوهه | خاوند دَ حکمت دے | اے زما ربه

په څهٔ غواړی نو هغے له مزیدار تدبیر وکړی هغه په هرڅهٔ پوهه دَ حکمت خاوند دے ، اے زما ربه!

قَدْ آتَيْتَنِي مِنَ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِي مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ ؕ

تا راکړله ماته | بادشاهی | او تا وښودلو ماته | تعبیر | دَ خوبونو

تا ماله حکومت هم راکړو ، او دَ خوبونو دَ تعبیر علم دِ راکړو.

فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ قف أَنتَ وَلِيِّي فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ؕ

اے پیدا کوونکیه! | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | هم ته زما کارساز یئے | په دنیا کښے | او آخرت (کښے)

اے دَ آسمانونو او دَ زمکے خالقه! ته په دنیا او په آخرت دواړو کښے زما کارساز یئے

تَوَفَّنِي مُسْلِمًا وَأَلْحِقْنِي بِالصَّالِحِينَ ۝١٠١ ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ

ما اُوچت کړه (له دنیا نه) | فرمانبردار | او ما شامل کړه | په نیکانو کښے | دا خبرونه دی

ما دَ دنیا نه دَ فرمانبردارئ په حالت کښے اُوچت کړے او دَ نیکانو په ټولی کښے م شامل کړے! دا دَ غیبو خبرونه

الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ

دَ غیبو | (چه) وحی کوو مونږ دَ دے | ستا طرف ته | او نهٔ وے ته | دَ دوی سره

دی چه تا ته ئے مونږ دَ وحی په ذریعه درلیږو او نهٔ هغه وخت دَ هغوئ سره موجود نهٔ وے

إِذْ أَجْمَعُوا أَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُونَ ۝١٠٢ وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ

هرکله چه دوی جمع کړو (پوخ کړو) | خپل کار | او دوی | بد تدبیر کولو | او نهٔ دی اکثر خلق

کله چه هغوئ په خپله اراده باندې اتفاق کړے وو او سازشونه ئے تیارول. او (په دوئ کښے) اکثر خلق

وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ ۝١٠٣ وَمَا تَسْأَلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ؕ

اگرکه ته وغواړے | ایمان راوړونکی | او نه غواړے ته له دوی نه | په دے (تبلیغ) | څهٔ اجر

ایمان نهٔ راوړی اگرکه ډیر ستا زړهٔ غواړی. او ته څهٔ دَ دوئ نه په دے تبلیغ باندې څوا اجر نهٔ غواړے

إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِينَ ﴿١٠٤﴾ وَكَأَيِّن مِّنْ اٰيَةٍ

نهٔ دے دا | مګر نصيحت | دَ ټولو جهانونو دَپاره | او ډیرے | نخښے دی

دا (قرآن) خو دَ ټول مخلوق دَ پاره عام نصيحت دے . او په آسمانونو او په زمکه کښے ډیرے

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا

په آسمانونو کښے | او زمکه (کښے) | چه تيريږی دوی | په هغے | او | دوی | له هغے نه

نخښے پرتے دی چه دوی پرے (هر وخت) تيريږی ، او دوی دَ هغے نه مخونه

مُعْرِضُونَ ﴿١٠٥﴾ وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِاللّٰهِ إِلَّا وَهُم

مخ اړونکی دی | او ايمان نهٔ راوړی | اکثر له دوی نه | په الله باندِ | مګر | دوی

اړولی وی . او په دوی کښے اکثر په الله تعالیٰ ايمان نهٔ راوړی او بيا شرک هم

مُّشْرِكُونَ ﴿١٠٦﴾ أَفَأَمِنُوا أَن تَأْتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ

هم مشرکان وی . | پس آيا دوی بے ويرے شول | (له دے نه) چه راشی په دوی | راخوريدونکے (آفت)

کوی . آيا دا خلق دَ دے خبرے نه بے غمه شوی دی چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه پرے دَ عذاب

مِّنْ عَذَابِ اللّٰهِ أَوْ تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿١٠٧﴾

دَ الله دَ عذاب نه | يا راشی په دوی | قيامت | ناګهانه | او دوی ته خبر هم نه وی .

څهٔ داسے آفت راپريوزی چه په دوی خورشی يا ناګهانه پرے قيامت راشی او دوی ترے نه خبر قدر له هم نهٔ وی

قُلْ هٰذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللّٰهِ عَلٰى بَصِيرَةٍ

ووايه | دا | زما لاره ده | زهٔ رابلم | دَ الله طرف ته | په ښکاره دليل يم

(اے پيغمبره!) ورته ووايه دا زما لاره ده چه زهٔ خلق الله تعالیٰ ته رابلم ، زهٔ هم خپله لار په سمه رڼا

أَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِي وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٠٨﴾

زهٔ | او هغه (هم) چا چه زما پيروی وکړه | او الله پاک دے | او نهٔ يم زهٔ | له مشرکانو نه

باندِ ښکاره وينم او زما ملګری (هم) او الله پاک دے او زما دَ مشرکانو سره هيڅ واسطه نشته

وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي إِلَيْهِمْ

او نهٔ دی ليږلی مونږ | له تا نه وړاندِ | مګر | سړی | چه مونږ وحی راليږله | هغوی ته

او مونږ چه له تا نه وړاندِ دَ (مختلفو کلو خلقو ته څوک ليږلی وو نو هم سړی مو ليږلی وو ، کومو طرف ته چه به

مِّنْ أَهْلِ الْقُرٰى أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا

دَ کلو له اوسيدونکو نه | پس آيا نهٔ دی ګرځيدلی دوی | په زمکه کښے | چه کتلے ئے

مونږ وحی ليږله ، نو آيا دا خلق په دنيا کښے ګرځی راګرځی نه چه کتلے ئے وے

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ

چه څنګه شو | انجام | دَ هغه خلقو | چه وړاندِ له دوی نه وو | او يقيناً کور دَ آخرت

چه کوم خلق له دوی نه وړاندِ تير شوی دی دَ هغوی څهٔ انجام شوے وو ، او البته دَ آخرت کور

وقف النبی صلی الله عليه وسلم

خَيْرٌ لِّلَّذِينَ اتَّقَوْا ۗ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٠٩﴾ حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْئَسَ

بهتر دے | دَ هغو دَ پاره | کوم چه پرهیز وکړو | پس آیا تاسو عقل نهٔ لرئ | ترد ے چه | هرکله | نا اُمیده شول

دَ هغو خلقو دَ پاره بهتر دے کوم چه پرهیزګاردی پس آیا تاسو نهٔ پوهیږئ، ترد ے چه کله پیغمبران مایوسه شول

الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا جَاءَهُمْ نَصْرُنَا

پیغمبران | او دوی ګمان وکړو | چه دوی | د دروغژن کړے شوی دی | نو راغے دوی ته | زمونږ مدد

او دَ دوی ګمان شو چه (اوس) دوی دروغژن کړے شوی دی نو دوی ته زمونږ مدد راورسیده

فَنُجِّيَ مَن نَّشَاءُ ۖ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١١٠﴾

نو خلاص کړے شو | هغه چا ته چه | مونږ غوښتل | او نهٔ شي لرے کیدے | زمونږ عذاب | دَ مجرمانو خلقو نه

پس خلاص کړے شول هغه بچ کړے شول، او زمونږ عذاب دَ مجرمانو نه نهٔ پستنه کیږي۔ نو کوم چه مونږ غوښتل

لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ۗ مَا كَانَ

یقیناً دے | دَ هغوئ په قصو کښے | عبرت | دَ عقل مندانو دَ پاره | نهٔ دے (قرآن)

بیشکه دَ هغوئ په قصو کښے پوهه خلقو له لوئے عبرت دے۔ دا (قرآن) دَ

حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ وَلَٰكِن تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ

خبره | دَ دروغو جوړه شوے | او | لیکن | تصدیق دے | دَ هغه څهٔ چه | له دے نه وړاندې دی

دروغو جوړ (کلام) نهٔ دے، بلکه دَ هغه (کتاب) تصدیق کوی چه وړاندې ترے نه راغلے دے۔

وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿١١١﴾

او تفصیل | دَ هر څیز | او هدایت | او رحمت دے | دَ هغو خلقو دَ پاره | چه ایمان راوړی

او دَ هر (مذهبی) څیز تفصیل بنائی، او مؤمنانو له هدایت او رحمت دے۔

١٢ ع ٦

سُورَةُ الرَّعْدِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ ثَلَاثٌ وَ | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | أَرْبَعُونَ آيَةً وَسِتُّ رُكُوعَاتٍ

سورة رعد په مدینه کښے نازل شوا او په | (شروع کوم) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان دیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ۴۳ آیتونه او ۶ رکوع ګانې دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان (او) دیر زیات دَ رحم خاوند دے

الٓمٓرٰ ۚ تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ ۗ وَالَّذِي أُنزِلَ إِلَيْكَ

الف لام میم را | دا | آیتونه دی | دَ کتاب | او هغه څهٔ چه | نازل شوی دی | ستا طرف ته

الف لام میم را۔ دا (دَ قرآن) دَ کتاب آیتونه دی، او ستا دَ رب له طرف نه څهٔ چه په تا نازل کړے شوی

مِن رَّبِّكَ الْحَقُّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١﴾

ستا دَ رب له طرف نه | حق دی | لیکن | اکثر خلق | ایمان نهٔ راوړی

دی، هغه (بالکل) رښتیا دی، مګر اکثر خلق ایمان نهٔ راوړی۔

اللَّهُ الَّذِي رَفَعَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ۖ ثُمَّ اسْتَوَىٰ

الله هغه دے | چه اُوچت ئے کړل | آسمانونه | بے ستنو | چه تاسو ئے وینئ | بیا | ئے قرار ئے ونیوو

الله تعالیٰ هغه (پاک) ذات دے چه آسمانونه ئے بغیر ستنو اُوچت کړی دی (لکه چه) تاسو ئے وینئ، بیا په عرش (دَ حکومت)

عَلَى الْعَرْشِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۭ كُلٌّ يَّجْرِيْ

په عرش | او په کار ئې ولګول | نمر | او سپوږمۍ | هر یو روان دے

قائم دے ، او نمر او سپوږمۍ ئې په کار لګولې دي، او هر یو په مقرر

لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ

مقرره موده د پاره | هغه انتظام کوي | د کار | هغه په تفصیل سره بیانوي | نخښې | چه تاسو

وخت پورې روان دے، هم هغه د هر یو خیز انتظام کوي ، هغه خپلې نخښې په تفصیل سره بیانوي چه

بِلِقَاۗءِ رَبِّكُمْ تُوْقِنُوْنَ ۝ وَهُوَ الَّذِيْ مَدَّ الْاَرْضَ

په ملاقات | د رب خپل | یقین وکړئ | او هم هغه دے چا چه | وغوړوله | زمکه

تاسو د خپل رب په وړاندې د حاضریدو یقین وکړئ او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه زمکه ئې خوره کړې ده

وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْهٰرًا ۭ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ

او جوړ ئې کړل | په دے کښې | غرونه | او نهرونه | او له هر قسمه | میوو نه ئې

او په دے کښې ئې غرونه او دریابونه جوړ کړي دي ۔ او په دے کښې ئې د هر قسم میوو

جَعَلَ فِيْهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ ۭ

پیدا کړے | په زمکه کښې | جوړے | دوه دوه | پټوي | شپه | په ورځ سره

جوړې جوړې پیدا کړي دي ، او هغه شپه د ورځې په رڼا سره پټوي

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝ وَفِي الْاَرْضِ

بیشکه | په دے کښې | نخښې دي | هغو خلقو د پاره | چه فکر کوي | او په زمکه کښې

په دے خبرو کښې د فکر کوونکو خلقو د پاره نخښې پرتې دي او په زمکه کښې مختلفې

قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ وَّجَنّٰتٌ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّزَرْعٌ وَّنَخِيْلٌ

(ډیر قسمه) ټوټې دي | د یو بل سره ا‌‌‌نښتې | او باغونه دي | د انګورو | او پټي دي | او کجورے دي

ټکړے دي چه یو بل سره ملاؤ دي او د انګورو باغونه دي او پټي دي او کجورے دي

صِنْوَانٌ وَّغَيْرُ صِنْوَانٍ يُّسْقٰى بِمَاۗءٍ وَّاحِدٍ ۣ وَنُفَضِّلُ

ښاخونو والا | او بغیر ښاخونو والا | اوبه ئې کولے شي | هم یو (قسم) اوبو نه | او مونږ فضیلت ورکوو

د ځنو ډیر ښاخونه وي او ځنې د یو تنے ، ټول په یو قسم اوبو باندې خړوبیږي ، خو بیا هم مونږه یو د

بَعْضَهَا عَلٰي بَعْضٍ فِي الْاُكُلِ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

ځنو له | په ځنو باندې | په خوراک کښې | بیشکه | په دے کښې | نخښې دي

بل نه په خوراک کښې غوره پیدا کړي دي، بیشکه په دے ټولو خبرو کښې نخښې پرتې دي هغو

لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝ وَاِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ

هغو خلقو د پاره | چه عقل لري | او که چرے | ته تعجب کوے | پس عجیبه ده | خبره د دوی

خلقو د پاره چه عقل نه کار اخلي ۔ او که ته تعجب کوے نو د تعجب جوګه خو د دوئ دا وینا ده

ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا ءَاِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

آیا کله چه شو موږ خاورې | آیا موږ به | پیدا کیږو | بیا د سره | هم دا خلق دي | کوم چه | انکار وکړو

آیا کله چه شو موږ مړهٔ شوا و خاورې شو نو لا بیا به د نوی سره پیدا کیږو ، دا هغه خلق دي چه د خپل رب نه منکر دي

بِرَبِّهِمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ الْاَغْلٰلُ فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ

د خپل رب | او هم دا خلق دي | چه طوقونه به وي | د دوی په څټونو کښې | او دوی دي | خاوندان | د اور

او د دوی په څټونو کښې به طوقونه زولنې پراتهٔ دي ، او هم دغه خلق دوزخیان دي

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝۵ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ

دوی به | په هغې کښې | همیشه وي | او دوی په تاند ئ غواړي له تا نه | بدي | وړاندې

چه همیشه به پکښې (لوغړن) پراتهٔ وي ، او دوی په تا تلوار کوی چه مصیبت د د عافیت نه وړاندې

الْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ ؕ وَاِنَّ رَبَّكَ

له ښیګړې نه | او بیشکه تیر شوی دي | وړاندې له دوی نه | عذابونه | او بیشکه | ستا رب

راشي ، حال دا دے چه د دوی نه وړاندې ډیر عذابونه تیر شوی دي ، او بیشکه ستا رب د دے

لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ ۚ وَاِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيْدُ

لوئ معاف کوونکے دے | د خلقو | باوجود د دوی د ظلم | او بیشکه | ستا رب | سخت

خلقو د زیاتی کولو باوجود بخښونکے دے ، او بیشکه ستا رب سخت سزا ورکوونکے

الْعِقَابِ ۝۶ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ

عذاب ورکوونکے دے | او وائي | کافران خلق | چه ولے نازله نهٔ شوه | په دهٔ باندې

دے. او دا کافران وائي چه د دهٔ د رب له طرف نه په دهٔ باندې څه نخښه

اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّ لِكُلِّ قَوْمٍ

څه نخښه | د دهٔ د رب له طرف نه | بیشکه چه ته | ویرونکے یې | او | هر یو قوم د پاره

ولے نازله نهٔ شوه ، (اے پیغمبره!) ته خو صرف (د بدو نتیجو نه) ویرونکے یې او د هر قوم د پاره یو

هَادٍ ۝۷ اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا

یو لار ښوونکے دے | الله | پوهیږي | په هغه څهٔ | چه په خیټه کښې ئې لري | هره یوه ښځه | او څهٔ چه

رهنما دے. الله تعالیٰ ښهٔ پیژني څهٔ چه د یوے ښځې په خیټه کښې پراتهٔ وي او څهٔ چه (د ښځو)

تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ؕ وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ ۝۸

کموي | رحمونه | او څهٔ چه زیاتیږي | او هر یو څیز | د هغهٔ سره | په اندازه دے

په رحم کښې (د بچي د پیدا وښت په حقله) کمے زیاتے کیږي او دا هر څیز د هغهٔ په نزد په یوه مقرره اندازه کیږي

عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ ۝۹ سَوَآءٌ مِّنْكُمْ

هغه پوهه دے | په پټو | او په ښکاره | د ټولو نه لوئے دے | خاوند د اوچتے مرتبے دے | برابر دي | له تاسو نه

هغه په پټو او په ښکاره د ټولو څیزونو باندې ښهٔ عالم دے ، ډیر لوئے دے ، عالیشان دے (د هغهٔ په علم کښې) برابر دي که

مَّنْ اَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ بِهٖ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِالَّيْلِ

څوک چه | پټوي | خبره | او څوک چه | په اوچت آواز وائي دا | او څوک چه | پټ دے | په شپه کښے

څوک خبره پټه کړي ، او که څرګنده کړي ، او که څوک د شپے (په تیاره کښے) پټ شي او که د

وَسَارِبٌۢ بِالنَّهَارِ ﴿١٠﴾ لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ

او (څوک چه) روان دے | د ورځے | د هغهٔ | پهرے داردي | د دے (بنده) نه وړاندې | او د ده نه وروستو

ورځے (څرګند) ګرځي راګرځي ، هر یوله وار په وار راتلونکے (فرښتے) مقرر دے دی وړاندے هم او وروستو هم

يَحْفَظُوْنَهٗ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ

هغوی د دهٔ حفاظت کوي | د الله په حکم سره | بیشکه الله | نهٔ بدلوي | حالت د یو قوم

چه د الله تعالیٰ په حکم د هغهٔ حفاظت کوي ، بیشکه الله تعالیٰ د یو قوم (ښهٔ) حالت نهٔ بدلوي

حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ؕ وَاِذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ

ترڅو چه | بدل کړي دوي | هغه څهٔ چه | د دوي په زړونو کښے دے (خپل حالت) | او هرکله چه | اراده وکړي | الله | یو قوم ته

ترڅو چه هغوئ په خپل ځان کښے (په خپله) تبدیلي پیدا نهٔ کړي او هرکله چه الله تعالیٰ په یو قوم باندے د مصیبت

سُوْٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ ۚ وَمَا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّالٍ ﴿١١﴾

د بدئ | نو هیڅوک واپس کولے نهٔ شي هغه | او نشته دے د دوي | د هغهٔ نه سیوا | مددګار

(راوستو) اراده وکړي نو هیڅوک ئے واپس کولے نهٔ شي او نهٔ بل څوک د خدائے په مقابله کښے د هغوئ مددګولے شي.

هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّ يُنْشِئُ

هم هغه دے چه | ښائي تاسو ته | بریښنا | د یاره د ویرے | او امیدونو لو | او | اوچتوي

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسو ته د بجلئ برق ښائي چه د ویرے او امید دواړو ذریعه ده او (د اوبو نه ډکے) درنے

السَّحَابَ الثِّقَالَ ﴿١٢﴾ ۚ وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِكَةُ

ورېځے | درنے | او پاکي بیانوي | رعد | د هغهٔ تعریف سره | او فرښتے (هم)

درنے ورېځے راخیژوي او رعد (ګړګړے) په تعریف سره د هغهٔ پاکي بیانوي او فرښتے هم د هغهٔ د رعب

مِنْ خِيْفَتِهٖ ۚ وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيْبُ بِهَا مَنْ يَّشَآءُ

د هغهٔ د ویرے نه | او هغه رالیږي | تندر | بیا راغورزوي هغه | په چا چه هغه وغواړي

نه (رپیږي او د هغهٔ پاکي بیانوي) او هغه تندر رالیږي نو چه په چا غواړي په هغه ئے راغورزوي

وَهُمْ يُجَادِلُوْنَ فِي اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيْدُ الْمِحَالِ ﴿١٣﴾ ؕ

او دوي | جګړے کوي | د الله په حقله | او هغه | سخت | نیوونکے دے

او (تر ټولو چه) دوئ د الله په حقله جګړے کوي ، حال دا چه هغه د لوئے طاقت خاوند دے.

لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ ؕ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ

هم د هغهٔ | بلنه | رښتینے ده | او کوم چه | دوي بلي | د هغهٔ نه سیوا | هغوي جواب نهٔ ورکوي | دوي ته

هم د هغهٔ بلنه برحق ده - او څوک چه د هغهٔ نه بغیر نورو خلق بلي نو هغوئ ورته هیڅ جواب ورکولے

بِشَيْءٍ إِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ

هیڅ څیز | مګر | لکه چه (څوک) خواره کړي خپل دواړه لاسونه | د اوبو طرف ته | چه ورسیږي | د ده خُلې ته | او نه دی هغه

هیڅ شی، مګر د هغه بنده په شان چه خپل دواړه لاسونه اوبو ته اوغځوي چه د ده خُلې ته راورسیږي حال دا چه هغه

بِبَالِغِهٖ ؕ وَمَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ⑭ وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ

ده ته رسیدونکي | او نه ده | بلنه | د کافرانو | مګر په ګمراهۍ کښې (بې اثره) | او الله ته | سجده کوي

ده ته نه شي راسیدې او د کافرانو بلنه خو بې اثره او ضائع ده، او څوک چه په اسمانونو کښې او زمکه کښې

مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ

هر هغه څوک | چه په اسمانونو کښې | او زمکه کښې دي | په خوښه | او په ناخوښه | او سورې د دوی | د صبا

دي په خوښه یا په ناخوښه هم الله تعالیٰ ته سجده کوي او د هغوئ ټول سورې هم سحر او ماښام

وَالْاٰصَالِ ⑮ ۩ قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ قُلِ

او د ماښام (په وخت) | ووایه | څوک دے | رب | د آسمانونو | او د زمکے | ووایه

ورته سجده کوي. (اے نبی!) تپوس ترے نه وکړه چه د آسمانونو او د زمکے رب څوک دے؟ نو ورته ووایه چه

اللّٰهُ ؕ قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ لَا يَمْلِكُوْنَ

الله دے | ووایه | آیا تاسو نیولي دي | بې له هغه نه | دوستان | هغوی اختیار نه لري

الله دے. ورته ووایه چه آیا تاسو د هغه نه بغیر نور داسے مدد ګاران ځان له نیولي دي چه هغوئ د خپل ځان

لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا ؕ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى

د خپل ځان د پاره | د فائدے | او نه د نقصان | ووایه | آیا | برابر دے | ړوند

د پاره د نفع او ضرر اختیار هم نه لري، ورته ووایه چه آیا ړوند او د سترګو خاوند چرے برابر کیږي

وَالْبَصِيْرُ ۙ اَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمٰتُ وَالنُّوْرُ ۚ اَمْ جَعَلُوْا

او بینا؟ | یا | آیا | برابر دي | تیارهٔ | او رڼا | یا دوی جوړوي

شي؟ یا تیارهٔ او رڼا چرے یو برابر کیدے شي؟ یا دوئ الله تعالیٰ له

لِلّٰهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوْا كَخَلْقِهٖ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ ؕ

الله د پاره | (داسے) شریکان | چه هغوی پیدا کړی وي | په شان د پیدا کولو د هغهٔ | پس ګډوډ شوے دے | پیدا ښت | په دوی

داسے شریکان راپیدا کړي دي چه د الله د مخلوق غوندې مخلوق ئے پیدا کړے دے چه دوئ ته د پیدا ښت په حقله شک پیدا

قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ⑯ اَنْزَلَ

ووایه | الله | پیدا کوونکے دے | د هر څیز | او هغه | یو دے | غالب دے | هغهٔ راوورولے

شوے وي. ورته ووایه چه الله تعالیٰ د هر څیز خالق دے او هغه یو دے (او) په ټولو غالب دے، هغهٔ د بره نه

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ اَوْدِيَةٌ ۢ بِقَدَرِهَا فَاحْتَمَلَ

له اسمان نه | اوبهٔ | بیا را وبهیدل | خوړونه | په خپله اندازه | بیا اوچت کړو

اوبهٔ راوورولے، چه د هغے په اندازه خوړونه راوبهیدل، نو د دغے سیلاب

السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ۚ وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ

سیلاب | زګ | دَ پاسه راتلونکے | او له هغه څه نه | چه ګرموی ئے دوی | په هغے باندې | په اور کښے

په سر باند زګونه راوُختل، او څه چه دوئ په اور کښے ګرموی

ابْتِغَاءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهُ ۚ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ

دَ پاره دَ غوښتلو | دَ کالی | یا دَ سامان | زګ دے | په شان دَ دے | دغه شان | بیانوی

دَ کالو یا دَ لوښو جوړولو دَ پاره په هغے باندې هم د غسے زګونه راخیژي۔ دغه شان الله تعالیٰ دَ حق او

اللَّهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ۚ فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاءً

الله | حق | او باطل | لیکن کوم | زګ چه دے | هغه لاړ شی | اوُچ شی

دَ باطل مثالونه بیانوی، نو زګونه خو اوُچ شی هسے بیکاره لاړ شی

وَأَمَّا مَا يَنفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ ۚ كَذَٰلِكَ

او هغه څه چه | فائده ورکوی | خلقو ته | هغه پاتے شی | په زمکه کښے | دغه شان

او کوم څیز چه خلقو ته فائده ورکوی نو هغه په دنیا کښے باقی پاتے شی ، الله تعالیٰ هم دغه

يَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ ⑰ لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنَىٰ

بیانوی | الله | مثالونه | هغه خلقو دَ پاره | چه حکم ئے ومنلو | دَ خپل رب | بهتری ده

شان مثالونه بیان فرمائی ۔ چا چه دَ خپل رب خبره ومنله هغوئ له ښه بدله (مقرره) ده.

وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ

او کوم خلقو چه | حکم وُنه منلو | دَ هغهٔ | که چرے وی | دَ هغوئ | هغه څهٔ | چه په زمکه کښے دی

او چا چه دَ هغهٔ خبره وُنهٔ منله که هغوئ سره دَ دنیا ټول څیزونه هم وُشی او دومره قدر ور سره

جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لَافْتَدَوْا بِهِ ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ سُوءُ

ټول | او په شان دَ دے (نور هم وی) | دَ هغهٔ سره | هغه په خپله بدله کښے ورکول وغواړي | هغه | هم داخلق دی | کوم ؤ پاره چه به | بد

نور هم وُشی نو هغوئ به ئے په فدیه کښے ورکولو ته تیار شی دَ هغوئ حساب به ډیر سخت

الْحِسَابِ ۙ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ⑱ أَفَمَن يَعْلَمُ أَنَّمَا

حساب وی | او ځائے دَ دوی | دوزخ دے | او (هغه) بد | ځائے دے | پس آیا هغه کس | چه پوهیږی | چه څه

وی او دَ هغوئ ټیکاؤ ندره به دوزخ وی او هغه ډیر خراب ځائے دے ، آیا څوک چه دا یقین لری

أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ أَعْمَىٰ ۚ إِنَّمَا

نازل شوی دی | تا ته | ستا دَ رب له طرف نه | هغه حق دی | په شان دَ هغه چا دے | چه ړوند وی | بیشکه چه

چه په تا باند دَ خپل رب دَ طرف نه کوم (کتاب) راغلے دے هغه دے دَ هغه چا په شان کیدے شی څوک چه ړوند وی؟

يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ ⑲ الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَلَا يَنقُضُونَ

نصیحت قبلوی | عقل مند خلق | کوم خلق چه | پوره کوی | وعده دَ الله | او هغوئ نهٔ ماتوی

نصیحت خو بس دَ پوهے خاوندان قبلوی، څوک چه دَ الله تعالیٰ سره کړے وعده پر ځائے کوی او هغه وعده

وقف النبی صلی الله علیه وسلم

النصف ٦/٣/٢

الْمِيثَاقَ ﴿٢٠﴾ وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ

او خوک چه هغه (رشتې) پالي د کومو د پالنې چه الله تعالی حکم کړے دے او

وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُونَ سُوءَ الْحِسَابِ ﴿٢١﴾ وَالَّذِينَ

د خپل رب نه ویریږي او د سخت حساب کتاب نه ویریږي ، او خوک چه د خپل

صَبَرُوا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنْفَقُوا

رب د رضا مندۍ په تلاش کښې مضبوط لګیا وي او مونځونه کوي ، او زمونږ د

مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ

ورکړي رزق نه (د نیکۍ په لاره کښې) په پټه او په ښکاره خرڅ کوي او د نیکیو په ذریعه بدۍ ختموي

أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٢﴾ جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا

هم دا هغه خلق دي کومو د پاره چه د آخرت کور دے، یعنې د همیشه اوسیدو باغونه دي په کومو کښې چه به

وَمَنْ صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَالْمَلَائِكَةُ

دوي پخپله او د دوي پلار نیکه او د دوي په ښځو او اولاد کښې چه خوک نیک وي داخلیږي ، او فرښتے به

يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ ﴿٢٣﴾ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ

دروازے نه مخې له راځي (دا به وائي) چه سلامت وسئ ځکه چه تاسو به صبر کولو نو

فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٤﴾ وَالَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ

جهان کښې مو انجام ښه شو ، او خوک چه د الله تعالی سره کړے وعده د ټینګولو نه پس

مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ

ماتوي ، او د کومے (رشتې) چه الله تعالی د پالنے حکم ورکړے دے هغه نه پالي

وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ ۙ أُولَٰئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ

او په ملک کښې فساد جوړوي ، او په داسے خلقو به لعنت وریږي او د دے خلقو

سُوْٓءُ الدَّارِ ﴿٢٥﴾ اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ

خراب | کور دے | الله | فراخه کوی | رزق | چا دَ پاره چه | هغه وغواړی | او تنګوی (رکوی)

انجام به خراب وی۔ الله تعالیٰ چه چاله وغواړی نو روزی ورله فراخه کړی او چاله چه وغواړی (نو روزی ورله) تنګه کړی

وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِى الْاٰخِرَةِ

او دوی خوشحاله دی | په ژوند | دَ دُنیا | او نهٔ دے | ژوند | دَ دنیا | دَ آخرت په مقابله کښے

او دوئ دَ دنیا په ژوند خوشحالیږی ، او دَ دُنیا ژوند دَ آخرت په مقابله کښے (احستل) ډېره حقیره (ناوانی)

اِلَّا مَتَاعٌ ﴿٢٦﴾ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ

مګر | سامان لږ | او وائی | کوم خلق چه | کافران دی | چه ولے نازله نهٔ شوه | په دهٔ بانډے

سودا دہ ۔ او کافران وائی چه ولے په دهٔ بانډے دَ خپل رب له طرف نه (زمونږ

اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ

نخښنه | دَ دهٔ دَ رب دَ طرف نه | ووایه | بیشکه | الله | ګمراه کوی | چالره | چه وغواړی

تاکلے) معجزه رانغله ؟ ورته ووایه چه الله تعالیٰ دَ چا په حقله وغواړی نو ګمراه ئے کړی

وَيَهْدِىْٓ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ ﴿٢٧﴾ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ

او | لاره ښائی | خپل طرف ته | هغه چا ته | چه رجوع وکړی | هغه خلق چه | ایمان راوړی | او اطمینان مومی

او هغه چا ته سمه لار ښائی چه رجوع ورته وکړی ، یعنی څوک چه ایمان راوړی او دَ الله تعالیٰ

قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ؕ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ﴿٢٨﴾ اَلَّذِيْنَ

زړونه دَ هغوئ | په ذکر دَ الله سره | یادساته! | هم په ذکر دَ الله سره | آرام نیسی | زړونه | هغه خلق چه

په ذکر مطمئن شی ، واوُره! چه دَ الله تعالیٰ په ذکر سره زړونه تسلی کیږی ، چا چه

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ﴿٢٩﴾

ایمان ئے راوړه | او عملونه ئے وکړل | نیک | خوشحالی ده | هغوی دَ پاره | او ښیسهٔ | ټیکاوُنړه ده.

ایمان راوړه او نیک کارونه ئے وکړل ، هغوئ له خوشحالی ده او ښائسته انجام دے.

كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِىْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ

دغه شان | مونږ را ولیږلے تهٔ | (دا سے) اُمت کښے | چه تیر شوی دی | له دے نه وړاندِ | (ډیر) اُمتونه

دغه شان مونږ تهٔ په یو داسے اُمت کښے رالیږلے یئے چه له دے نه وړاندِ هم ډیر امتونه تیر شوی دی

لِّتَتْلُوَا۟ عَلَيْهِمُ الَّذِىْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ

چه تهٔ ولولے | دوی ته | هغه څه چه | مونږ ئے وحی کړے ده | ستا طرف ته | او دوی | انکار کوی

چه تهٔ ورته هغه (کتاب) واوُروے چه مونږ درته رالیږلے دے خو حال دا دے چه هغوئ هم

بِالرَّحْمٰنِ ؕ قُلْ هُوَ رَبِّىْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ

دَ رحمٰن | ووایه | هم هغه دے | زما رب | نشته بل څوک معبود | سیوا دَ هغهٔ نه | هم په هغهٔ | ما توکل وکړو

دَ رحمٰن نه انکار کوی ، ورته ووایه چه هم هغه زما رب دے ، بے دَ هغهٔ نه بل معبود نشته ، په هغهٔ مِ توکل دے۔

وَإِلَيْهِ مَتَابِ ﴿٣٠﴾ وَلَوْ أَنَّ قُرْآنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ

او هم دهٔ طرف ته | زما رجوع ده | او که چرې دے | يو قرآن | چه روان لے شوے | په (ذريعه د) دے | غرونه

او هغه ته به واپس ځم ۔ او که يو قرآن داسے راغلے وے چه په هغے غرونه اړولے شی

أَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْأَرْضُ أَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتَىٰ ۗ بَلْ لِلَّهِ

يا شليدلے | په دے سره | زمکه | يا خبرے کولے | په دے سره | مړو | بلکه | الله دپاره دے

يا پرے زمکے ټکړے ټکړے کيدے شی، يا د دے په ذريعه مړو خبرے کولے (بيا به هم دوی ايمان نهٔ راوړو)

الْأَمْرُ جَمِيعًا ۗ أَفَلَمْ يَيْأَسِ الَّذِينَ آمَنُوا أَنْ لَوْ يَشَاءُ اللَّهُ

کار | ټول | ايا نهٔ ده شوے تسلی | مؤمنانو ته | که چرے غوښتلے | الله

بلکه ټول کارونه د الله په اختيار کښے دی، اوس هم د مسلمانانو په دے خبره تسلی نهٔ ده شوے چه که الله تعالیٰ غوښتلے

لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا ۗ وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا تُصِيبُهُمْ

نو هدايت به يے کولے | خلقو | ټولو ته | او هميشه | کوم خلق چه | کافران دی | دوی ته به رسيږی

نو ټولو خلقو ته به يے هدايت کړے وو ۔ او دا کافران به هميشه په داسے حالت کښے پراته وی چه د خپلو

بِمَا صَنَعُوا قَارِعَةٌ أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِنْ دَارِهِمْ حَتَّىٰ يَأْتِيَ

د دوی د عملونو په بدله کښے | سخت مصيبت | يا به راښکته کيږی | نزدے | د دوئ د کور | ترڅو چه | راشی

ګناهونو په وجه به پرے څهٔ نا څهٔ آفت راځی يا به د دوئ په خواؤ شا باندِ راځی ، ترڅو چه د الله تعالیٰ

وَعْدُ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ﴿٣١﴾ ع وَلَقَدِ

وعده | د الله | بيشکه | الله | خلاف نهٔ کوی | له وعدے نه | او بيشکه

د وعدے پوره کيدو وخت راشی ۔ بيشکه الله تعالیٰ د خپلے وعدے نه خلاف نهٔ کوی ، او له تا نه وړاندِ

اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِنْ قَبْلِكَ فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا

ټوقے شوے وے | پيغمبرانو پورے | له تا نه مخکښے | پس ما مهلت ورکړو | هغو خلقو ته | چه کافران دی

هم په پيغمبرانو پورے ملنډے شوی دی ، خو ما (اول) کافرانو ته مهلت ورکړو

ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴿٣٢﴾ أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ

بيا | ما ونيول دوی | نو څنګه | وو | زما عذاب | پس آيا کوم (الله) | چه هغه نګران دے

نو بيا مے راونيول ، نو (تهٔ ګوره چه) زما سزا څومره سخته ده ، پس آيا کوم الله چه د هر سړی د ټولو

عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ۗ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ قُلْ

په هر نفس باند | څهٔ چه هغهٔ ګټلی دی | او جوړ کړی دی دوی | الله دپاره | شريکان | ووايه

عملونو نګران دے (هغه د بتانو په شان کيدے شی) او دوئ د (داسے) الله شريکان جوړ کړی دی ۔ ورته ووايه

سَمُّوهُمْ ۚ أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْأَرْضِ أَمْ بِظَاهِرٍ

واخلئ نامے د دوی | يا تاسو ښائی هغهٔ ته | هغه څهٔ | چه د هغهٔ په علم کښے نشته | په زمکه کښے | يا کوئ سرسری

چه د هغوئ صفتونه خو (لږ) واورو، آيا تاسو الله تعالیٰ ته داسے (نا آشنا) څيزونه خبروئ چه په ټوله دنيا کښے د هغهٔ په علم کښے

مِّنَ الْقَوْلِ ؕ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوْا

خبره | بلکه | ښائسته کړے شو | کافرانو دَ پاره | دَ دوی فریب | او منع کړے شول

نشته که تا هغوئ تش په خُله (ستا معبودان) دی بلکه کومو خلقو چه کفر وکړو هغوئ دَ پاره دَ هغوئ مکر ښائسته کړے شوے او هغوئ

عَنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿۳۳﴾

(دَ حقے) لارے نه | او چا لره چه | ګمراه کړی | الله | نو نشته | دهٔ دَ پاره | څوک لاره ښودونکے

لارے (دَ هدایت) نه منع کړے شوی دی او څوک چه الله تعالیٰ ګمراه کړی هغه ِیل هیڅوک په لاره کولے نهٔ شی

لَهُمْ عَذَابٌ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَقُّ ۚ

دوئ دَ پاره | عذاب دے | په ژوند کښے | دَ دُنیا | او خامخا عذاب | دَ آخرت | ډیر سخت دے

هغوئ دَ پاره دَ دنیا په ژوند کښے عذاب دے او دَ آخرت عذاب خو ډیر سخت دے.

وَمَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ﴿۳۴﴾ مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِىْ وُعِدَ

او نشته دے | دوی دَ پاره | دَ الله نه | څوک بچ کونکے | مثال | دَ هغه جنت | دَ کوم چه | وعده شوے ده

او هیڅوک دوئ دَ الله تعالیٰ (دَ عذاب) نه بچ کولے نهٔ شی، دَ کوم جنت چه پرهیزګارو خلقو سره وعده شوے

الْمُتَّقُوْنَ ؕ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ اُكُلُهَا دَآئِمٌ

پرهیزګارانو سره | بهیږی به | لاندې دَ هغے نه | نهرونه | میوے دَ هغے | همیشه دی

ده، دَ هغے کیفیت دادے چه لاندې به ترے نه ولے بهیږی، دَ هغے میوے او دَ هغے سورے به

وَّظِلُّهَا ؕ تِلْكَ عُقْبَى الَّذِيْنَ اتَّقَوْا ۖ وَّعُقْبَى الْكٰفِرِيْنَ

او دَ هغے سورے هم | دا دے | انجام | دَ هغو خلقو | چه پرهیزګاری | او انجام | دَ کافرانو

تل عمری قائم وی، دغه دَ پرهیزګارو انجام دے، او دَ کافرانو انجام (دَ دوزخ) اور

النَّارُ ﴿۳۵﴾ وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ

دوزخ دے | او هغه خلق | چه ورکړے دے مونږ هغوی ته | کتاب | دوی خوشحالیږی | په هغه څه

دے - او هغه خلق کوموله چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوئ په تا باندې په نازلیدونکی (کلام)

اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمِنَ الْاَحْزَابِ مَنْ يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ ؕ

چه نازل وے شی | ستا طرف ته (قرآن) | او ځنے قومونه | هغه دی چه انکار کوی | دَ دے (قرآن) دَ ځنو (حصو)

خوشحالیږی او دَ هغوئ په مختلفو ټولو کښے داسے کسان هم شته چه دَ دے دَ ځنو حصو نه انکار کوی

قُلْ اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَآ اُشْرِكَ بِهٖ ؕ اِلَيْهِ

ووایه | بیشکه چه | ماته حکم شوے دے | چه زهٔ عبادت وکړم | دَ الله | او شریک دِ ونهٔ نیسم | دَ هغهٔ سره | هم دَ هغهٔ طرف ته

ورته ووایه چه ماته خو بس دا حکم شوے دے چه دَ الله تعالیٰ عبادت وکړم او هیڅوک ورسره شریک نهٔ کړم، زهٔ دَ

اَدْعُوْا وَاِلَيْهِ مَاٰبِ ﴿۳۶﴾ وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ؕ

زهٔ بلنه کوم | او هم دَ هغهٔ طرف ته | (ماله) واپس کیدل دی | او هم دغه شان | نازل کړو مونږ دا | حکم | په عربئ کښے

هغهٔ طرف ته بلنه کوم او هم هغهٔ ته به واپس کیږم ـ او هم دغه شان مونږ دا (کتاب) دَ یو صفا حکم په طور نازل کړو

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ

او كه چيرې | تا پيروي وكړه | دَ دوى دَ خواهشاتو | پس له دې نه | چه راغلے دے تاته | له علم نه

او كه ته دِ دے (رسم) علم دَ راتلو نه پس هم دَ هغوئ په خواهشاتو پسے لاړ ے نو

مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ ﴿٣٧﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا

نه به وي تا دَ پاره | دَ الله په مقابله كښې | څوك مدد ګار | او نه څوك بچ كوونكے | او بيشكه | رالیږلي وو مونږ | پيغمبران

دَ الله تعالىٰ په مقابله كښې به دِ نه څوك مددګار پيدا شي او نه بچ كوونكے. او له تا نه وړاندِ هم مونږ ډير پيغمبران

مِّنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَّذُرِّيَّةً ۭ وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ

له تا نه وړاندِ (هم) | او وركړے وے مونږ | هغوئ ته | ښځے | او اولاد (هم) | او نه وو (اختيار) | يو پيغمبر ته

ليږلي دي او هغوئ له مو ښځے او اولاد وركړې دي ، او هيڅ يو پيغمبر دَ الله تعالىٰ

أَنْ يَّأْتِيَ بِاٰيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللّٰهِ ۭ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ﴿٣٨﴾

چه راوړے وے | څه نخښه | بغير | دَ حكم | دَ الله نه | هر يو | وخت | (حكم دے) ليكلے شوے

دَ حكم نه بغير يو آيت (قدرله) هم نه شي راوړے ، دَ هرے زمانے يو (خپل) كتاب وى

يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ۚ وَعِنْدَهٗٓ أُمُّ الْكِتٰبِ ﴿٣٩﴾

لرے كوى | الله | څه چه غواړى | او باقى ساتى (څه چه غواړى) | او هغه سره | اصل | كتاب دے.

الله تعالىٰ چه كوم حكم غواړى هغه لرے كوى او چه كوم غواړى هغه باقى ساتى او اصل كتاب خو صرف هغهٔ سره دے

وَإِنْ مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِيْ نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ

او كه چيرے | وښايو مونږ تاته | څه | هغه څه چه | وعده ئے كوو مونږ دوى سره | يا وفات دركړو مونږ تاته

او مونږ چه دوئ سره (دَ عذاب) كومه وعده كوو كهٔ دَ هغے يوه برخه تاته وښايو ، يا تا له وفات دركړو

فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ﴿٤٠﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا

پس بيشكه | چه په تا باندِ | پيغام رسول دى | او په مونږ باندِ | حساب اخستل | آيا نهٔ دى ليدلى دوى | چه مونږ

نو ستا كار خو بس حكمونه رسول دى او زمونږ په ذمه حساب اخستل دى ، آيا دوئ نهٔ ګورى چه مونږ

نَأْتِي الْأَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۭ وَاللّٰهُ يَحْكُمُ

راوړاندِ كيږو | زمكے ته | كموؤ دا | دَ دِے له طرفونو نه | او الله | حكم كوى

په دے زمكه راوړاندِ كيږو او دَ هرے غاړے نه ئے (په دوئ) راتنګوو او حكومت الله تعالىٰ كوى

لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ ۭ وَهُوَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿٤١﴾ وَقَدْ مَكَرَ

څوك بندوَلے نهٔ شى | دَ هغهٔ حكم | او | هغه | ډير زر | حساب اخستونكے دے | او بيشكه فريب كړے وو

هيڅوك دَ هغهٔ حكم بندولے نه شى او هغه ډير زر حساب خلاصوى. او له دوئ نه وړاندِ هم

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلّٰهِ الْمَكْرُ جَمِيْعًا ۭ يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ

هغه خلقو چه | له دوى نه وړاندِ وو | نو هم دَ الله دى | تدبيرونه | ټول | هغه پوهيږى | په هغه څه چه كوى

خلقو ډير ډير فريبونه كړى دو حال دا چه تدبيرونه خو ټول الله تعالىٰ سره پراته دى هغهٔ ته معلومه ده چه هريو

كُلُّ نَفْسٍ ۗ وَسَيَعْلَمُ الْكُفّٰرُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٤٢﴾ وَ

هر يو نفس | او ډير زر به معلومه شي | كافرانو ته | چه چا ډپاره دے | دَ آخرت | كور |

څه څۀ كاروونه كوي ، او كافرانو ته به زر معلومه شي چه دَ آخرت انجام دَ چا (ښۀ) دے . او

يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَسْتَ مُرْسَلًا ۗ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ

وائي | هغه خلق | چه كافران دي | چه نۀ يئے ته | پيغمبر | ووايه | كافي دے | الله

كافران وائي چه ته رسول نۀ يئے ! ورته ووايه چه الله تعالىٰ

شَهِيْدًا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۙ وَمَنْ عِنْدَهٗ عِلْمُ الْكِتٰبِ ﴿٤٣﴾

ګواه | په مينځ زما | او په مينځ ستاسو كښے | او هغه څوك | چه دَ هغۀ سره | دَ كتاب علم دے

زما او ستاسو ترمينځه كافي ګواه دے او هغه څوك (ګواه دے) چاسره چه دَ (ټيټر اسماني) كتاب علم دے

| سُوْرَةُ اِبْرٰهِيْمَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اثْنَتَانِ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّسَبْعُ رُكُوْعَاتٍ |
|---|---|---|
| سورة ابراهيم په مكه كښے نازل شوا و | (شروع) دَ الله په نوم سره چه لوئے مهربان ډير زيات رحم كوونكے دے | په دے كښے ۵۲ آيتونه او ۷ ركوع گانے |

شروع كوم دَ الله په نوم سره چه لوئے مهربان ډير زيات رحم كوونكے دے .

الٓرٰ ۟ كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ

الف لام را | (دا) كتاب دے | چه راليږلے دے مونږ | ستا طرف ته | چه ته وُباسے | خلق | له تيارونه

الف لام را ـ دا يو كتاب دے كوم چه مونږ ستا طرف ته (حكم) نازل كړے دے چه ته خلق (دَ كفر) دَ تيارونه وُباسے

اِلَى النُّوْرِ ۙ بِاِذْنِ رَبِّهِمْ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۙ﴿١﴾

دَ رڼا طرف ته | په حكم | دَ رب دَ دوی | طرف دَ لارے | دَ غالب | ستائيلى شوى ته

او (دَ ايمان) رڼا ته ئے راولے دَ هغوئ دَ رب په حكم سره دَ هغه خدائے لارے ته چه غالب او دَ تعريفونو لائق دے .

اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ وَ وَيْلٌ

الله | دَ كوم دَ پاره چه دی | څۀ چه په آسمانونو كښے دى | او څۀ چه په زمكه كښے دى | او | تباهي ده

هغه الله چه دَ آسمانونو او دَ زمكے هر څيز دَ هغۀ مال دے او كافرانو دَ

لِّلْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدِ ۙ﴿٢﴾ الَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ

كافرانو دَ پاره | له عذاب | سخت نه | كوم خلق چه | خوښوى

پاره دَ ډير سخت عذاب بربادى ده ، يعنى هغه خلق چه دَ آخرت په مقابله

الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

ژوند | دَ دُنيا | په آخرت باندے | او منع كوى (خلق) | دَ الله دَ لارے نه

كښے دَ دنيا ژوند خوښوى او خلق دَ الله تعالىٰ دَ لارے نه منع كوى

وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۗ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍۢ بَعِيْدٍ ﴿٣﴾

او لټوى په هغے كښے | عيبونه | هم دا خلق دى | په ګمراهئ كښے | دَ لرے

او په هغے كښے عيبونه لټوى ، دوئ په ګمراهئ كښے تر لرے رسيدلى دى .

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ

او نه دے | لیږلے مونږ | هیڅ پیغمبر | مګر | په ژبه | د دهٔ د قوم

او مونږ چه هرکله یو رسول لیږلے دے نو هغهٔ خپل قوم ته هم د هغوئ په ژبه کښے پیغام رسولے دے ـ

لِيُبَيِّنَ لَهُمْ ۭ فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْ

د پاره د دے چه بیان کړی | دوئ ح پاره (حکمونه) | بیا ګمراه کوی | الله | هغه څوک چه وغواړی | او لاره ښائی

چه زمونږ حکمونه ورته ښهٔ څرګند کړی بیا د چا په حقله چه الله غواړی نو ګمراه ئے کړی او د چا په حقله چه غواړی

مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ④ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا

هغه چا ته | چه وغواړی | او هغه | زبردست | د حکمت خاوند دے | او بیشکه | مونږ ولیږلو

نو هدایت ورته وکړی ، او هغه غالب د حکمتونو خاوند دے او مونږ موسیٰ (علیه السلام) د خپلو

مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ اَنْ اَخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ الظُّلُمٰتِ

موسیٰ | په نخښو زمونږ سره | چه راوُ باسه | خپل قوم | له تیارو نه

نخښو سره لیږلے وو چه خپل قوم د (جهالت د) تیارو نه راوُ باسه او (د علم) رڼړا ته ئے

اِلَى النُّوْرِ ڏ وَذَكِّرْهُمْ بِاَيّٰىمِ اللّٰهِ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

د رڼړا طرف ته | او نصیحت وکړه دوی ته | په ورځو د الله | بیشکه | په دے کښے | نخښے دی

راولـه ، او هغوئ ته د الله تعالیٰ (عبرتناکے تاریخی) معاملے وریاد دے کړه ، په دِے کښے د هر صبر کوونکی

لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ⑤ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ

د پاره د هر | صبر کوونکی | شکر ګزار ره | او هرکله چه | ووئیل | موسیٰ | خپل قوم ته

شکر ایستونکی د پاره لوئے لوئے نخښے پرتے دی او هرکله چه موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته ووئیل

اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ اَنْجٰىكُمْ

یاد کړئ | نعمت | د الله | (چه) په تاسو (دے) | هرکله چه | هغهٔ نجات درکړو تاسو ته

چه د الله تعالیٰ هغه مهربانئ را یاد ے کړی کوم چه هغهٔ په تاسو بانِدی کړی دی کله چه هغهٔ تاسو له د فرعون

مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْۗءَ الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُوْنَ اَبْنَاۗءَكُمْ

له قوم د فرعون نه | چه رسولو به دوی تاسو ته | خراب | عذاب | او وژل به ئے | ځامن ستاسو

قوم نه نجات درکړو چه تاسو له به ئے سخت تکلیفونه درکول او ستاسو ځامن به ئے ذبح کول ، او

وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَاۗءَكُمْ ۭ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَاۗءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ⑥

او ژوندئ به ئے پریښودلے | لونړه ستاسو | او په دے کښے ستاسو | ازمیښت وو | ستاسو د رب له طرف نه | ډیر لوئے

ستاسو لونړه به ئے ژوندئ پریښودلے او په دِے کښے ستاسو د رب له طرف نه ډیر لوئے ازمیښت وو ـ

وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكُمْ لَىِٕنْ شَكَرْتُمْ لَاَزِيْدَنَّكُمْ

او هرکله چه | اعلان وکړو | ستاسو رب | که چرے شکر وکړو تاسو | نو زهٔ به زیات درکړم تاسو ته

او (یاد کړئ) کله چه ستاسو رب تاسو له خبر درکړو چه که تاسو (زما) شکر وباسئ نو زهٔ به تاسو له ضرور نور (نعمتونه) درکړم

وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ ⑦ وَقَالَ مُوسَىٰ إِنْ تَكْفُرُوا

اوکه چیرې | تاسو ناشکري وکړه | نو بیشکه | زما عذاب | ډیر سخت دے | او ووئیل | موسیٰ | که چیرې کافر شوئ

اوکه ناشکري کوئ نو زما عذاب ډیر سخت دے ۔ او موسیٰ علیه السلام ووئیل که تاسو انکار وکړئ

أَنْتُمْ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا فَإِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ⑧

تاسو | او هغه څوک چه | په زمکه کښې دی | ټول | نو بیشکه | الله | بے نیازه | ستائیلے شوے دے

او د زمکې په مخ اوسیدونکی ټول خلق د الله تعالیٰ نه منکر شي نو الله تعالیٰ (ددے نه) بے پروا او د تعریفونو لائق دے

أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَأُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ

آیا نه دے راغلے تاسو ته | خبر | د هغه خلقو | چه له تاسو نه وړاندې وو | د قوم د نوح | او د عاد

آیا تاسو ته د پخوانو خلقو حالات نه دی رارسیدلی ۔ د نوح علیه السلام د قوم او د عاد او د ثمود

وَثَمُودَ ۛ وَالَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ ۛ لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ

او د ثمود | او کوم خلق چه | پس له دوی نه وو | نه | پیژني دوی (هیڅوک) | سیوا | د الله

د هغو نورو قومونو چه د دوئ نه وروستو راغلی وو ؟ د هغوئ شمیره بے د الله نه بل چانه معلومه نه ده ۔

جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ

راغلل دوی ته | د دوی پیغمبران | په واضحو دلیلونو سره | پس ورکړل دوی | خپل لاسونه | د پیغمبرانو په خلو کښې

هغوئ ته خپلو پیغمبرانو څرګند دلیلونه راوړی خو هغوئ خپل څپقونه د دغو پیغمبرانو په خلو کښې ورکړل

وَقَالُوا إِنَّا كَفَرْنَا بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِهِ وَإِنَّا لَفِي شَكٍّ مِمَّا

او دوی ووئیل | موږ انکار کوو | په هغه څه | چه تاسو رالیږلے شوی یئ په هغې | او بیشکه موږ | په شک کښې یو | له هغه څه

او ورته ئے ووئیل چه موږ ستاسو په ذریعه د رالیږلی شوو حکمونو نه انکار کوو او تاسو چه موږ ته کومې بلنه راکوئ

تَدْعُونَنَا إِلَيْهِ مُرِيبٍ ⑨ قَالَتْ رُسُلُهُمْ أَفِي اللَّهِ شَكٌّ

چه بلئ تاسو موږ ته | هغې ته | چه په ډیر شک کښې دے | ووئیل | د دوئ پیغمبرانو | آیا په الله کښې مو | شک دے

د هغې په حقله زموږ (په زړونو کښې) شک او تردد دے ۔ د هغوئ پیغمبرانو ورته ووئیل آیا تاسو د الله په حقله شک کوئ

فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَدْعُوكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُمْ

چه پیدا کوونکے دے | د آسمانونو | او | د زمکې | هغه رابلی تاسو | د پاره د دے چه وبخښي | تاسو ته

چه آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړی دی ، هغه خو تاسو (توحید ته) رابلی چه ستاسو ګناهونه معاف

مِنْ ذُنُوبِكُمْ وَيُؤَخِّرَكُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى ۚ قَالُوا إِنْ أَنْتُمْ

ګناهونه ستاسو | او هغه مهلت درکړی تاسو ته | تر موده | مقرره پورې | دوی ووئیل | نه یئ تاسو

کړی ، او تر یوې مقررې نیټې پورې مهلت درکړی ، هغوئ ورته ووئیل چه تاسو خو

إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا تُرِيدُونَ أَنْ تَصُدُّونَا عَمَّا

مګر بنیادم | په شان زموږ | تاسو غواړئ | چه موږ منع کړئ | له هغه څه نه

غونډې بنیادم یئ ۔ تاسو خو بس دا غواړئ چه موږ د هغو (معبودانو) نه منع کړئ چه زموږ پلار نیکه

كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا فَأْتُوْنَا بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ⑩ قَالَتْ

چه عبادت ئې کولو | زمونږ پلارانو نيکونو | پس راوړه مونږله | (څه) دليل | ښکاره | ووئيل

به ئې عبادت کولو ، ښه دا ده تو مونږ ته يو ښکاره معجزه راوړئ ـ پيغمبرانو ورته ووئيل

لَهُمْ رُسُلُهُمْ اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ

دوی ته | پيغمبرانو د دوی | (چه) نه يو مونږ | مګر | بنيادم | په شان ستاسو | او ليکن | الله

چه مونږ خو بيشکه چه هم ستاسو غونډې بنيادم يو ، خو الله تعالیٰ چه په

يَمُنُّ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ وَمَا كَانَ لَنَآ

احسان کوی | په چا چه غواړی | له خپلو بندګانو نه | او نه دی ممکن | مونږ د پاره

خپلو بندګانو کښې چه په چا ئې غواړی نو په هغه احسان وکړی ، او دا زمونږ په وس کښې نه ده

اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

چه مونږ راوړو تاسو ته | څه دليل (معجزه) | مګر | په حکم | د الله | او (هم) په الله بانډې | توکل پکار دے

چه مونږ تاسو ته د الله تعالیٰ د حکم نه بغير څه معجزه وښايو ، او مؤمنانو له پکار دی چه صرف په

الْمُؤْمِنُوْنَ ⑪ وَمَا لَنَآ اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنَا

مؤمنانو له | او څه (عذر) دے مونږ د پاره | چه مونږ توکل ونه کړو | په الله بانډې | او هغه ښودلی دی مونږ ته

الله بانډې توکل وساتی ـ او مونږ دِ ولے په الله تعالیٰ بانډې توکل ونه کړو ، حال دا چه هغه مونږ ته

سُبُلَنَا ؕ وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰى مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا ؕ وَعَلَى اللّٰهِ

لارے زمونږ | او مونږ به ضرور صبر کوو | په هغه څه | چه تکليف راکوئ تاسو مونږ ته | او په الله بانډې

زمونږ (د دين) طريقے وښودلے او تاسو چه مونږ له کوم تکليف راکوئ ـ مونږ به په دے ضرور صبر کوو او هم په الله

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ⑫ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِرُسُلِهِمْ

توکل کول پکار دی | توکل کوونکو له | او ووئيل | هغو خلقو چه | کافران وو | خپلو پيغمبرانو ته

بانډې توکل کوونکو له توکل کول پکار دی ـ او کومو خلقو چه د کفر لار اختيار کړه هغوی خپلو پيغمبرانو ته

لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِّنْ اَرْضِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِىْ مِلَّتِنَا ؕ

(چه) مونږ به ضرور وباسو تاسو | له خپلې زمکے نه | يا به خامخا راوګرځئ تاسو | زمونږ په دين کښې

ووئيل چه مونږ به تاسو ضرور د خپل ملک نه وباسو يا به زمونږ مذهب ته بيا راواپس کيږئ

فَاَوْحٰٓى اِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظّٰلِمِيْنَ ⑬

پس وحی وکړه | دوی ته | د دوی رب | چه مونږ به ضرور هلاک کړو | ظالمان

نو خپل رب هغوئی ته وحی وکړه چه مونږ به ضرور ظالمان تباه کوو ـ

وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ

او مونږ به ضرور آباد کړو تاسو | په زمکه کښې | پس له دوی نه | دا د هغه چا د پاره ده | چه ويريږی

او تاسو به د هغوئی نه پس به دغې ملک کښې آباد دوو ـ دا (د انعام وعده) هر هغه چا سره ده چه زما

مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ ﴿١٤﴾ وَاسْتَفْتَحُوا وَخَابَ

له دردېدو نه زما په وړاندې | او ويرېږي | زما (د عذاب) د وعدې نه | او فتح وغوښتله دوی | او | نامراده شو

په وړاندې د اودرېدو نه او زما د عذاب د وعدې نه ويرېږي او هغوئ فيصله وغوښتله او هر يو سرکش ضدي

كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿١٥﴾ مِّن وَرَائِهِ جَهَنَّمُ وَيُسْقَىٰ مِن مَّاءٍ

هر يو سرکښه | ضدی | او وروستو د هغه نه | دوزخ دے | او په ده به څښولے شي | اوبه

بنده نامراده پاتے شو (او په قيامت کښے) د هغه مخے ته دوزخ پروت دے او په هغه به د وينے زوے غوندې

صَدِيدٍ ﴿١٦﴾ يَتَجَرَّعُهُ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ

د نوونو | چه ګوټ ګوټ به څښي هغه | او نزدے نه دے چه تير به کړے شي د حلق نه | او راځي به ده ته | مرګ

اوبه څښولے شي چه ګوټ ګوټ به څښي او د ستوني نه به ئے ښکته کولے نه شي او د هر ے غاړے نه به

مِن كُلِّ مَكَانٍ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ ۖ وَمِن وَرَائِهِ عَذَابٌ

له هر ځائے نه | او نه به وی دے | مړکيدونکے | او وروستو د ده نه به | عذاب وی

پرے مرګ راځي خو هغه به مړ کيږي نه . او په يو پسے بل سخت عذاب ته به

غَلِيظٌ ﴿١٧﴾ مَّثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ ۖ أَعْمَالُهُمْ كَرَمَادٍ

ډير سخت | مثال | د هغو خلقو | کوم چه کفر وکړو | د خپل رب سره | عملونه د دوی | په شان د ايرو دی

ورمخامخ کيږي . چا چه د خپل رب نه انکار کړے دے ، د هغوئ د عملونو مثال د هغه ايرو په شان دے

اشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيحُ فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ ۖ لَّا يَقْدِرُونَ مِمَّا

چه سخت راوالوزي په هغے | باد | په ورځ د سيلئ | نه به شي مونده دوئ | له هغو (عملونو) نه چه

چه د سيلئ په ورځ ئے يو تيز او تند باد والوزوی ، نه چه دوی کول په هغے کښے به په هيڅ

كَسَبُوا عَلَىٰ شَيْءٍ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ ﴿١٨﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ

دوی کړی وی | هيڅ څيز | هم دا ده | ګمراهی | د لرے (سخته) | آيا تا نه دی کتلی | چه | الله

قابو نه شي مونده ، هم دا هغه (لرګنده) غټه ګمراهي ده ، آيا تا نه دی ليدلی ؟ چه الله تعالیٰ

خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ

پيدا کهله | آسمانونه | او زمکه | به حقه | که چرے هغه وغواړی | نو تاسو به ځئ تاسو | او را به ولی

آسمانونه او زمکه په حقه پيدا کړی دی ، که هغه وغواړی نو تاسو به فنا کړی او بل نوے

بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٩﴾ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ بِعَزِيزٍ ﴿٢٠﴾ وَبَرَزُوا

مخلوق | نوے | او نه ده دا | الله د پاره | څه ګران | او حاضر به شي دوی

مخلوق به راولي ، او دا کار الله تعالیٰ ته هيڅ ګران نه دے ، او دوئ ټول به

لِلَّهِ جَمِيعًا فَقَالَ الضُّعَفَاءُ لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا

الله ته | ټول | بيا به وائي | کمزوري خلق | هغو خلقو ته چه | چه غرور به ئے کولو

الله تعالیٰ ته مخامخ کيږي ، نو (د دے دنيا) کمزوري خلق به (د دے دنيا) غټانو ته ووائي چه تيوس وکړی چه

إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ عَنَّا

بیشکه مونږ وو | ستاسو | تابع | پس آیا | تاسو | لرے کوونکی شئ | له مونږ نه

مونږ خو ستاسو (دَ حکم) تابع وو نو بیا آیا تاسو زمونږ نه دَ الله عذاب څهٔ قدرے

مِنْ عَذَابِ اللَّهِ مِن شَيْءٍ ۚ قَالُوا لَوْ هَدَانَا اللَّهُ لَهَدَيْنَاكُمْ ۖ

عذاب | دَ الله | څهٔ قدرے | دوی به ووائی | که چرے هدایت کړے وے مونږ ته الله | نو هدایت به کړے وو مونږ تاسو ته

کمولے شئ ؟ هغوئی به ورته ووائی که الله مونږ ته هدایت کړے وے نو مونږ به تاسو هدایت

سَوَاءٌ عَلَيْنَا أَجَزِعْنَا أَمْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِن مَّحِيصٍ ﴿٢١﴾

برابره ده | په مونږ | که ناقلاره شو مونږ | یا | صبر وکړو مونږ | نشته دے مونږ دَپاره | هیڅ خلاصے .

کړے وو اوس مونږ ټولو ته یو شان خبره ده که چغے وهو او که صبر کوو خو زمونږ خلاصے په هیڅ صورت کښے نشته

وَقَالَ الشَّيْطَانُ لَمَّا قُضِيَ الْأَمْرُ إِنَّ اللَّهَ وَعَدَكُمْ

او به وائی | شیطان | هر کله چه | فیصله وکړے شی | دَ کار | بیشکه الله | وعده کړے وه تاسو سره

او چه دَ ټولو کارونو فیصله وشی نو شیطان به ووائی چه بیشکه الله تعالیٰ تاسو سره رښتینے وعده

وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدتُّكُمْ فَأَخْلَفْتُكُمْ ۖ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم

وعده رښتینے | او ما وعده کړے وه تاسو سره | بیا ما دَ هغے خلاف وکړو تاسو سره | او نهٔ وو | زما | په تاسو باندی

کړے وه ، او ما هم درسره وعده کړے وه نو وعده خلافی مِ وکړه او زما په تاسو څهٔ زور نهٔ

مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا أَن دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي ۖ فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوا

څهٔ زور | مګر دا چه | ما راوبللئی تاسو | بیا تاسو زما خبره ومنله | پس مهٔ ملامته کوئی ما | او ملامته کړئی

چلیدو ، خو ما تاسو ته بلنه وکړه او تاسو زما خبره ومنله نو اوس ما مهٔ ملامته کوئی بلکه خپل

أَنفُسَكُم ۖ مَّا أَنَا بِمُصْرِخِكُمْ وَمَا أَنتُم بِمُصْرِخِيَّ ۖ إِنِّي

خپل ځانونه | نهٔ زهٔ | ستاسو فریاد آوریدے شم | او نهٔ تاسو | زما فریاد آوریدے شئ | بیشکه زهٔ

ځان ملامته کړئی (نن) نهٔ زهٔ ستاسو فریاد آوریدے شم او نهٔ تاسو زما فریاد آوریدے شئ، نن زهٔ په خپله

كَفَرْتُ بِمَا أَشْرَكْتُمُونِ مِن قَبْلُ ۗ إِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ

انکار کوم | له هغه څهٔ نه | چه تاسو به شریکولم زهٔ | له دے نه وړاندی | بیشکه | ظالمان چه دی | دوی دَپاره

دَ هغے خبرے نه بیزاره یم چه تاسو به پخوا دَ خدائے سره شریک کنړم . بیشکه دا سے ظالمانو دَپاره

عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢٢﴾ وَأُدْخِلَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا

به عذاب وی | درد ناک | او داخل به کړے شی | هغه خلق چه | ایمان ئے راوړے وی | او عمل ئے کړے وی

درد ناک عذاب (مقرر) دے ، او چا چه ایمان راوړے دے او نیک کارونه ئے کړی دی ، هغوئی به

الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا

نیک | باغونو ته | چه بهیږی به | لاندی دَ هغے نه | نهرونه | دوی به همیشه وی | په هغے کښے

داسے باغونو ته داخلولے شی چه دَ هغے لاندی به نهرونه بهیږی ، دَ خپل رب په حکم به هغوئی

بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ۭ تَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ﴿٢٣﴾ اَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ

په حکم | دَ ربّ دَ دوی | دَ دوی (دَ ملاقات) دعا به وی | په هغے کښے | سلام | آیا تا نهٔ دی کتلی | چه څنګه | بیان کړو

په دے کښے همیشه وی ، او هلته به دَ هغوئی دَ ملاقات دُعا "سلام" وی ، آیا تا ونهٔ لیدل چه الله تعالیٰ

اللّٰهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصْلُهَا ثَابِتٌ

الله | یو مثال | چه کړله ئے خبره | پاکیزه | په شان دَ اونے | پاکیزے | چه جرړه دَ هغے | مضبوطه وی

څنګه دَ پاکے کلمے مثال بیان کړے دے چه هغه دَ یوے پاکے اونے په شان ده چه دَ هغے جرړه (په زمکه

وَّفَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ ﴿٢٤﴾ تُؤْتِيْٓ اُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍۢ بِاِذْنِ

او | ښاخ دَ هغے | په آسمان کښے وی | ورکوی | خپله میوه | په هر یو | فصل کښے | په حکم

کښے) مضبوطه او ښاخ ئے په آسمان کښے دے ، هغه دَ خپل رب په حکم سره په هر فصل کښے خپله میوه

رَبِّهَا ۭ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ

دَ رب خپل | او بیانوی | الله | مثالونه | خلقو دَ پاره | چه دوی

ورکوی ، او الله تعالیٰ خلقو دَ پاره مثالونه ځکه بیانوی چه هغوئی ترے نه

يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٥﴾ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيْثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيْثَةِ ِۨ اجْتُثَّتْ

نصیحت حاصل کړی | او مثال | دَ خبرے ناپاکے | په شان دَ اونے ناپاکے دے | چه راوُبستلے شی

سبق واخلی ۔ او دَ یوے ناپاکے خبرے مثال دَ یوے ناپاکے اونے په شان دے چه دَ زمکے له

مِنْ فَوْقِ الْاَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ ﴿٢٦﴾ يُثَبِّتُ اللّٰهُ

دَ زمکے له پاسه نه | نشته دے هغے له | څهٔ مضبوطی | مضبوط ساتی | الله

پاسه نه راوویستلے شی (او) هغے دَ پاره هیڅ مضبوطیا نهٔ وی ، الله تعالیٰ مومنان دَ دغے پخے خبرے

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ

هغه خلق چه ایمان راؤړی | په خبرے | مضبوطے سره | په ژوندُ دَ دنیا کښے | او په آخرت کښے (هم)

(کلمه طیبے) په برکت سره دَ دنیا په ژوند کښے او په آخرت کښے (هم) مضبوط ساتی

وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ ڐ وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ﴿٢٧﴾

او بے لارے کوی | الله | ظالمان | او | کوی | الله | هغه څهٔ چه غواړی

او الله تعالیٰ ظالمان ګمراه ساتی ۔ او الله تعالیٰ چه څهٔ غواړی هغه کوی

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا وَّاَحَلُّوْا قَوْمَهُمْ

آیا تا نهٔ دی کتلی | هغه خلقو ته | چه بدل ئے کړو | دَ الله نعمت (ایمان) | په کفر سره | او ورکوز ئے کړو | خپل قوم

آیا تا هغه خلق نهٔ دی لیدلی کوم چه دَ الله تعالیٰ نعمت په ناشکرئ بدل کړو او خپل قوم ئے (هم) دَ

دَارَ الْبَوَارِ ﴿٢٨﴾ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلَوْنَهَا ۭ وَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿٢٩﴾ وَجَعَلُوْا

کور دَ هلاکت ته | (یعنی) په دوزخ کښے | هغوئی به داخلیږی په دے کښے | او (هغه) خرابه | ټیکاؤ نړه ده | او دوی جوړ کړل

هلاکت په کور یعنی په جهنم کښے ورکوز کړو چه توله به پکښے داخلیږی او هغه ډیره خرابه ټیکاؤ نړه ده او دے خلقو

لِلّٰهِ اَنۡدَادًا لِّيُضِلُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِهٖ ؕ قُلۡ تَمَتَّعُوۡا فَاِنَّ

الله دَپاره | شریکان | چه بې لارې کړي (خلق) | دَ دهٔ دَ لارې نه | ووایه | تاسو فائده واخلئ | بیا بیشکه

الله له شریکان جوړ کړي دي چه خلق دَ هغهٔ دَ لارې نه ګمراه کړي، ورته ووایه چه لږه فائده واخلئ، بیشکه

مَصِيۡرَكُمۡ اِلَى النَّارِ ۝٣٠ قُلۡ لِّعِبَادِىَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا يُقِيۡمُوا

ستاسو واپس کیدل | دَ دوزخ طرف ته دي | ووایه | زما بندګانو ته | کوم چه | ایمان راوړې دے | چه هغوئ قائم کړي

ستاسو واپس کیدل دوزخ طرف ته دي. (اے پیغمبره!) زما هغه بندګانو ته ووایه چه ایمان ئې راوړے دے چه هغوئ د

الصَّلٰوةَ وَيُنۡفِقُوۡا مِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً مِّنۡ قَبۡلِ

مونځ | او خرچ دِ کړي | له هغه څهٔ نه | چه رزق ورکړے مونږ دوئ ته | په پټه | او په ښکاره | وړاندې له دې نه

مونځونو پابندي وساتي او څهٔ چه مونږ ورکړي دي له هغې نه په پټه او په ښکاره (دَ نیکئ په لار کښې) خرچ کوي وړاندې له دې نه

اَنۡ يَّاۡتِىَ يَوۡمٌ لَّا بَيۡعٌ فِيۡهِ وَلَا خِلٰلٌ ۝٣١ اَللّٰهُ الَّذِىۡ خَلَقَ

چه راشي | هغه ورځ | چه نهٔ به وي اخستل خرڅول | په هغې کښې | او نهٔ دوستي | الله | هغه ذات دے | چه پیدا ئې کړل

چه هغه ورځ راشي چه په کښې به اخستل خرڅول نهٔ وي اونهٔ به دوستي په کار راځي. الله هغه پاک ذات دے چا چه

السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَاَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخۡرَجَ بِهٖ

آسمانونه | او زمکه | او نازل ئې کړے | له آسمان نه | اوبهٔ | بیا ئې راوویستلې | په دې سره

آسمانونه او زمکه پیدا کړل او دَ بره نه ئې اوبهٔ راواورولې ، بیا دَ هغې (اوبو) نه ئې

مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزۡقًا لَّـكُمۡ‌ۚ وَسَخَّرَ لَـكُمُ الۡـفُلۡكَ لِتَجۡرِىَ فِى الۡبَحۡرِ

میوې | روزي | تاسو دَ پاره | او تابع ئې کړه | تاسو دَ پاره | کشتئ | چه روانه وي | په سمندر کښې

(مختلف) میوې تاسو له دَ رزق په طور پیدا کړې او تاسو دَ پاره ئې کشتئ تابع کړه چه دَ هغهٔ په حکم په

بِاَمۡرِهٖ‌ۚ وَسَخَّرَ لَـكُمُ الۡاَنۡهٰرَ‌ ۝٣٢ وَسَخَّرَ لَـكُمُ الشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ

په حکم دَ دهٔ | او تابع ئې کړل | تاسو دَ پاره | دریابونه | او تابع ئې کړل | تاسو دَ پاره | نُور | او سپوږمئ

سمندر کښې روانه وي او ستاسو (فائدې) له ئې دریابونه تابع کړل او نُور او سپوږمئ ئې تاسو دَ پاره په کار ولګول چه

دَآٮِٕبَيۡنِ‌ۚ وَسَخَّرَ لَـكُمُ الَّيۡلَ وَالنَّهَارَ‌ ۝٣٣ وَاٰتٰٮكُمۡ مِّنۡ كُلِّ

همیشه روان | او تابع ئې کړل | تاسو دَ پاره | شپه | او ورځ | او در ئې کړل تاسو ته | له هر هغه څیز نه

همیشه روان وي، او تاسو دَ پاره ئې شپه او ورځ مسخر کړل او تاسو له ئې هغه ټول څیزونه درکړل

مَا سَاَلۡتُمُوۡهُ‌ ؕ وَاِنۡ تَعُدُّوۡا نِعۡمَتَ اللّٰهِ لَا تُحۡصُوۡهَا ؕ

څهٔ چه | تاسو غوښتل | او که چرې تاسو شمیرل وغواړئ | نعمتونه دَ الله | نو نهٔ به ئې شمیرلے شئ هغه

چه تاسو غوښتل، او که تاسو دَ الله تعالیٰ نعمتونه شمیرل غواړئ نو شمیره ئې پوره کولے نهٔ شئ

اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لَـظَلُوۡمٌ كَفَّارٌ ۝٣٤ وَاِذۡ قَالَ اِبۡرٰهِيۡمُ رَبِّ اجۡعَلۡ

بیشکه | انسان | ډیر ظالم | ډیر ناشکره دے | او هغه کله چه ووئیل | ابراهیم | اے زما ربه! | جوړ کړه

بیشکه چه انسان ډیر بې انصافه ناشکره دے او کوم وخت چه ابراهیم دُعا وکړه چه اے زما ربه! دا ښار (مکه)

هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ ﴿٣٥﴾

دا | ښار | ځائے دَامن | اولرے وُساته ما | او زما اولاد | (له دے نه) چه مونږ عبادت وکړو | دَ بتانو

دَ امن ځائے کړے ، او ما او زما اولاد دَ بتانو دَ عبادت نه بېچ وساتے.

رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ ۚ فَمَنْ تَبِعَنِيْ

اے زما ربه ! | بیشکه دوی | گمراه کړل | ډیر | خلق | پس چاچه | پیروی وکړه زما

اے زما ربه ! دے بتانو خو ډیر خلق گمراه کړی دی ، نو څوک چه په ما پسے روان دی

فَاِنَّهٗ مِنِّيْ ۚ وَمَنْ عَصَانِيْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣٦﴾ رَبَّنَآ

بیشکه هغه | له مانه دے | او چاچه | نافرمانی وکړه زما | نو بیشکه ته ُ | بخښونکے | مهربان یئے | اے زمونږه ربه

هغوئ خو زما دی او څوک چه زما نافرمانی وکړی نو ته ُ بخښونکے ډیر مهربانه یئے - اے زمونږه ربه

اِنِّيْٓ اَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ بِوَادٍ غَيْرِ ذِيْ زَرْعٍ عِنْدَ بَيْتِكَ

بیشکه ما آباد کړو | خپل اولاد | په داسے وادئ کښے | چه بے فصله دے | ستا دَ کور (کعبے) سره

بیشکه ما خپل اولاد ستا محترم کور کعبے سره نزدے په بے اُوبو او بے گیاه میدان کښے

الْمُحَرَّمِ ۙ رَبَّنَا لِيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ فَاجْعَلْ اَفْـِٕدَةً

چه عزتمند دے | اے زمونږه ربه ! | چه دوی قائم کړی | مونځ | پس کړه | زړونه

آباد کړو ، اے زمونږه ربه ! دَ پاره دَدے چه دوئ دَ مونځونو پابندی وُساتی ، نو دَ ځنے خلقو زړونه

مِّنَ النَّاسِ تَهْوِيْٓ اِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ

دَ خلقو | مائله | دَ دوی طرف ته | او روزی ورکړه دوی ته | له میوونه | چه دوی

دَ دوئ اړخ ته مائله کړے ، او دوئ له میوے روزی کړے چه ستا شکر

يَشْكُرُوْنَ ﴿٣٧﴾ رَبَّنَآ اِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِيْ وَمَا نُعْلِنُ ۗ وَمَا يَخْفٰى

شکر وکړی | اے ربه زمونږه ! | بیشکه تا ته معلوم دی | څه چه مونږ پټوو | او څه چه ښکاره کوو | او نهٔ دے پټ

وُباسی - اے زمونږه ربه ! بیشکه تا ته معلوم دی څهٔ چه مونږ پټوو او څهٔ چه څرګند وو ، او دَ الله تعالیٰ

عَلَى اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ﴿٣٨﴾ اَلْحَمْدُ

دَ الله نه | هیڅ څیز | په زمکه کښے | او نهٔ | په آسمان کښے | ټول تعریفونه

نهٔ په زمکه کښے څهٔ څیز پټ نهٔ دے او نهٔ په آسمان کښے - ټول تعریفونه الله

لِلّٰهِ الَّذِيْ وَهَبَ لِيْ عَلَى الْكِبَرِ اِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ ۗ

الله لره دی | چاچه | راکړل | ماله | په بوډاوالی کښے | اسماعیلؑ | او اسحاقؑ

دَ پاره دی چه ماته ئے په سپینه ږیره (دوه ځامن) اسماعیل او اسحاق (علیهما السلام) راکړل

اِنَّ رَبِّيْ لَسَمِيْعُ الدُّعَآءِ ﴿٣٩﴾ رَبِّ اجْعَلْنِيْ مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ

بیشکه | زما رب | آورېدونکے | دَ دُعا دے | اے زما ربه ! | جوړ کړه ما | قائموونکے | دَ مونځ

بیشکه زما ربّ دعاگانے آوری - اے زما ربه ! ما او زما اولاد (هم) دَ مونځ

وَمِنْ ذُرِّيَّتِي ۖ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَاءِ ﴿٤٠﴾ رَبَّنَا اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ

او زما له اولاد نه (هم) | اے زمونږ ربه! | او قبوله کړه | دُعا زما | اے زمونږ ربه! | وُبخښه ما | او مور او پلار زما

پابند وُساته ، اے زمونږ ربه! زما دُعا قبوله کړه. اے زمونږ ربه! ما او زما مور او پلار

وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ الْحِسَابُ ﴿٤١﴾ وَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ غَافِلًا عَمَّا

او (ټول) مؤمنان | په کومه ورځ | چه به قائمیږی | حساب | او نهٔ خیال مهٔ کوه | چه الله | بے خبره دے | له هغه څه

او ټول مومنان وُبخښه په کومه ورځ چه به حساب کتاب کیږی. او نهٔ دا گمان مهٔ کوه چه الله تعالیٰ دَ ظالمانو

يَعْمَلُ الظَّالِمُونَ ۚ إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ

چه کوی ئے | ظالمان | بیشکه چه | هغهٔ مهلت ورکړے دے دوی ته | تر هغے ورځے | چه غړیدلے به پاتے شی | په هغے کښے

دَ کارونو نه غافله دے ، هغوی ته ئے خو بس تر هغے ورځے پورے مهلت ورکړے دے چه سترگے به ئے

الْأَبْصَارُ ﴿٤٢﴾ مُهْطِعِينَ مُقْنِعِي رُءُوسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ

سترگے | منډے به وهی | اُوچت کړی به ئے وی | خپل سرونه | نهٔ به راواپس کیږی | دَ دوی طرف ته

غړیدلے پاتے شی. هغوی خپل سرونه اوچت کړی منډے به وهی ، دَ هغوی نظر به دَ هغوی طرف ته

طَرْفُهُمْ ۖ وَأَفْئِدَتُهُمْ هَوَاءٌ ﴿٤٣﴾ وَأَنْذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ

نظر د نه دَ دوی | او زړونه دَ دوی به | الوتی وی (له ویرے نه) | او ویروه | خلق | دَ هغے ورځے نه | چه را به شی په دوی

پسته نهٔ راگرځی او زړونه به ئے الوتی وی. او (اے پیغمبره!) خلق دَ هغے ورځے نه اُویروه په کومه کښے چه به

الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ

عذاب | نو وائی به | هغه خلق چه | ظالمان وُو | اے زمونږ ربه! | مهلت راکړه مونږ ته | تر موده نزدے پورے

په هغوی عذاب راشی ، نو هغه خلق کوم چه ظالمان دی وائی به اے زمونږ ربه! مونږ له لږ شان مهلت راکړه

نُجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ۗ أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُمْ مِنْ قَبْلُ

مونږ به قبوله کړو | بلنه ستا | او پیروی به وکړو | دَ رسولانو | آیا تاسو به قسمونه نهٔ خوړل | وړاندے له دے نه

چه مونږ ستا دعوت قبول کړو او دَ پیغمبرانو پیروی وکړو (دُ به وویلے شی چه) آیا تاسو له دے نه وړاندے قسمونه نهٔ خوړل؟

مَا لَكُمْ مِنْ زَوَالٍ ﴿٤٤﴾ وَسَكَنْتُمْ فِي مَسَاكِنِ الَّذِينَ ظَلَمُوا

چه نشته تاسو له | هیڅ زوال | او اوسیدلی وئ تاسو | په ځایونو کښے | دَ هغو خلقو | کوم چه ظلم کړے وو

چه په تاسو به هیڅ زوال نهٔ راځی ، حال دا چه تاسو دَ هغه چا په ځایونو کښے استوګن وئ چه په ځان ئے زیاتے

أَنْفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا

په خپلو ځانونو | او واضحه شوے وه | تاسو ته | (چه) څنگه | مونږ (سلوک) کړے وو | هغوی سره | او مونږ بیان کړی وو

کړے وو . او ښهٔ ښکاره درته معلومه وه چه هغوی سره مونږ څهٔ څهٔ کړی وو ، او دَ هغوی مثالونه مو

لَكُمُ الْأَمْثَالَ ﴿٤٥﴾ وَقَدْ مَكَرُوا مَكْرَهُمْ وَعِنْدَ اللَّهِ مَكْرُهُمْ

تاسو دَ پاره | مثالونه | او کړی دی دوی (دَ حق دین خلاف) | فریبونه خپل | او الله سره دی | فریبونه دَ دوی

درته اَوُرولی وُو . او دوی خپل ټول فریبونه خلاص کړل او دَ دوی دَ فریبونو جواب الله تعالیٰ سره موجود وو

وَإِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ الْجِبَالُ ﴿۴۶﴾ فَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ

او اګر چه وو | دَ دوی تدبیر (داسې) | چه وُخوزیږی | له دَ ډیره) نه | غرونه | پس خیال مهٔ کوه | په الله

اګر که دَ دوئ چالونه داسې دِ دانهٔ چالونه وو چه غرونه هم ورنه دَ تښتې نهٔ وو، نو داګمان هيڅرې مهٔ کوه

مُخْلِفَ وَعْدِهِ رُسُلَهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴۷﴾ يَوْمَ

دَ مخالفت کوونکی | دَ وعدې خپلې | دَ رسولانو خپلو سره | بیشکه | الله | ډیر زبردست دے | بدله اخستونکے | په کومه ورځ چه

چه الله به خپلو پیغمبرانو سره وعده خلافی وکړی، بیشکه الله غالب بدله اخستونکے دے (دوئ دَ هغې ورځې نه

تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ ۖ وَبَرَزُوا لِلَّهِ

بدله کړے شی | زمکه | بې له دے زمکې نه | او آسمانونه (هم) | او ښکاره به شی دوی | الله ته

ووېرېږه) په کومه ورځ چه زمکه به بله زمکه شی او آسمانونه (به نور آسمانونه شی) او دوئ ټول به یو غالب الله

الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿۴۸﴾ وَتَرَى الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ مُقَرَّنِينَ

چه یو دے | غالب دے | او ته به وینې | مجرمان | په دغه ورځ | تړلے شوی

ته ښکاره او حاضر شی، او ته به وُوینې چه مجرمان به په دغه ورځ په یو بل پورې په زنځیرونو

فِي الْأَصْفَادِ ﴿۴۹﴾ سَرَابِيلُهُمْ مِنْ قَطِرَانٍ وَتَغْشَىٰ وُجُوهَهُمُ

په زنځیرونو کښې | دَ دوی قمیصونه (به وی) | دَ ګوګړو | او پټ به کړی | مخونه دَ دوی

تړلی وی ____ دَ هغوئ قمیصونه به دَ ګوګړو نه جوړ وی، او په مخونو به ئے (دَ) اور (لمبه)

النَّارُ ﴿۵۰﴾ لِيَجْزِيَ اللَّهُ كُلَّ نَفْسٍ مَا كَسَبَتْ ۚ إِنَّ اللَّهَ

اور | چه بدله ورکړی | الله | هر یو | نفس ته | دَ هغه څهٔ | چه دهٔ کړی دی | بیشکه | الله

راخوره وی، دَ پاره دَ دے چه الله تعالیٰ هر نفس له دَ خپل عمل بدله ورکړی، بیشکه الله تعالیٰ

سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿۵۱﴾ هَٰذَا بَلَاغٌ لِلنَّاسِ وَلِيُنْذَرُوا بِهِ وَلِيَعْلَمُوا

ډیر زر حساب اخستونکے دے | دا (قرآن) | پیغام دے | خلقو دَ پاره | او چه وویرولے شی دوی په دے سره | او چه دوی پوهه شی

حساب کتاب ډیر زر خلاصوی. دا (قرآن) دَ خلقو دَ پاره یو لوئے پیغام دے او چه دَ دے په ذریعه هغوئ وویرولے شی او چه

أَنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَلِيَذَّكَّرَ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿۵۲﴾

چه بیشکه هم دے | معبود دے | یو | او چه نصیحت حاصل کړی | دَ عقل خاوندان

پوهه شی چه په حقیقت کښې الله یوازے معبود دے او چه دَ پوهې خاوندان ترے نه سبق واخلی

سُورَةُ الْحِجْرِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ تِسْعٌ وَ | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | تِسْعُونَ آيَةً وَسِتُّ رُكُوعَاتٍ

سورة حجر په مکه کښې نازل شوے ده | (شروع) دَ الله په نوم سره چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے یو کم سل آیتونه او شپږ رکوع ګانې

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

الٓر ۚ تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ وَقُرْآنٍ مُبِينٍ ﴿۱﴾

الف لام را | دا | آیتونه دی | دَ کتاب | او د قرآن | روښانه

الف-لام-را دا دَ یو (کامل) کتاب او واضح قرآن ____ آیتونه دی

رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ ﴿٢﴾ ذَرْهُمْ

ډېر ځله | به آرزو کوی | هغه خلق | چه کافران شول | چه کاش دوی وے | مسلمانان | دوی پریږده

ډېر ځله به هغه خلق کوم چه د کفر لار اختيار کړې ده دا آرزو به کوی چه اے کاش دوی مسلمانان شوی وے. دوی پريږده

يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٣﴾

چه خوری | او فائده واخلی | او په غفلت کښے وساتی دوی لره | اُميد | بيا زر به | دوی پوهه شی

چه خوری (څښی) او فائده اخلی او (غلط) اُميد دوی په غفلت کښے غورزوی پس ډير زر به ورته معلومه شی

وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَعْلُومٌ ﴿٤﴾ مَا تَسْبِقُ

او نه دے هلاک کړے مونږ | هيڅ کلے | مکر | هغے د پاره | يو ليکلے شوے | وخت مقرر وو | نه شی وړاندے کيدے

او مونږ هيڅ يو کلے نه دے هلاک کړے مګر د هغے د پاره يو ليکلے شوے وخت مقرر وو، يو قوم د خپلے

مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ﴿٥﴾ وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي

هيڅ اُمت | د خپل مقرر وخت نه | او نه | هغه وروستو پاتے کيدے شی | او کافرانو ووئيل | اے هغه سړيه

نيټے نه نه خو وړاندے تلے شی او نه وروستو پاتے کيدے شی. او دوی وائی چه اے هغه سړيه! چه

نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ﴿٦﴾ لَوْ مَا تَأْتِينَا بِالْمَلَائِكَةِ

په کوم چه نازل شوے دے | (دا) قرآن | بيشکه ته | ديوانه يئے | ولے ته نه راوړے مونږ ته | فرښتے

(ستا د وينا مطابق) قرآن د ديانړ نازل شوے دے ته خو تيا ر ليونے يئے. که چرے ته رښتينے يئے نو مونږ ته

إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٧﴾ مَا نُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ

که چرے يئے ته | له رښتيا ويونکو نه | مونږ نه نازلوو | فرښتے | مګر | په حق سره

(خپلے) فرښتے ولے نه را مخامخ کوے. (ورته ووايه) مونږ خو هسے فرښتے نه رالېږو مګر په حق سره

وَمَا كَانُوا إِذًا مُنْظَرِينَ ﴿٨﴾ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ

او نه به شو ورکولے دوی ته | هغه وخت | مهلت | بيشکه مونږ | نازل کړو | دا ذکر (قرآن) | او بيشکه مونږ | د دهٔ

او هغه وخت به دوی ته هيڅ مهلت ورکولے نه شی. بيشکه دا قرآن مونږ نازل کړے دے او هم مونږ به د

لَحَافِظُونَ ﴿٩﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِي شِيَعِ الْأَوَّلِينَ ﴿١٠﴾

حفاظت کوونکی يو | او بيشکه رالېږلی دی مونږ (پيغمبران) | وړاندے له تانه | په وړومبنو امتونو کښے

دهٔ خپله حفاظت کوو. او بيشکه مونږ له تانه وړاندے تيرو قومونو ته هم پيغمبران لېږلی وو،

وَمَا يَأْتِيهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿١١﴾ كَذَٰلِكَ

او نه به راتلو دوی ته | څوک | رسول | مګر دوی به هغه پورے | توقے کولے | دغه شان

او هيڅکله داسے نه وه شوے چه مونږ يو رسول لېږلے وی او هغوی ورپورے توقے نه وی کړے. دغه شان

نَسْلُكُهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٢﴾ لَا يُؤْمِنُونَ بِهِ وَقَدْ خَلَتْ

مونږ اچوو دا | په زړونو کښے | د ګناهګارانو | دوی ايمان نه راوړی | په دے | او بيشکه تير شوے دے

مونږ دا (توقے) د مجرمانو په زړونو کښے وراچوو. دوی په دے (قرآن) ايمان نه راوړی او د پخوانو خلقو نه

سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۳﴾ وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا مِّنَ السَّمَآءِ فَظَلُّوْا فِيْهِ

رسم | دَ پخوانو خلقو | او که چرې پرانيزو مونږ | په دوی | يوه دروازه | له آسمان نه | او دوی په هغې کښې

هم د غسې دستور راغلے دے ۔ او که مونږ دوی ته په آسمان کښې يوه دروازه پرانيزو بيا دوی په دې کښې

يَعْرُجُوْنَ ﴿۱۴﴾ لَقَالُوْٓا اِنَّمَا سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ

خيژی | نو خامخا به ووائی | چه بيشکه | بندے کړے شوے | زمونږ سترګے | بلکه | مونږ | هغه خلق يو

بره هم وُخيژی ۔ نو هم دا به وائی چه زمونږ نظربندی وکړے شوه ، بلکه په مونږ خو سم دم

مَّسْحُوْرُوْنَ ﴿۱۵﴾ وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّزَيَّنّٰهَا

چه جادو راندِ شوے دے | او يقينًا | مونږ جوړ کړل | په آسمان کښے | برجونه | او ښائسته کړے دے مونږ دا

جادو وُکړے شو ۔ او مونږ په آسمان کښے غټ غټ ستورې جوړ کړی دی او هغه مو کتونکو ته

لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿۱۶﴾ وَحَفِظْنٰهَا مِنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ رَّجِيْمٍ ﴿۱۷﴾ اِلَّا مَنِ

دَ کتونکو دَ پاره | او حفاظت کړے دے مونږ دَ دے | دَ هر | شيطان | مردود نه | مګر هغه څوک چه

ښائسته کړی دی ، او هغه مو دَ هر شيطان مردود نه محفوظ کړی دی ۔ مګر څوک چه

اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۸﴾ وَالْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا

په غلا واوُری | پس وُلګی هغه پسے | يوه شعله | روښانه | او زمکه | خوره کړے ده مونږ

په غلا خبره آوريدل وغواړی نو روښانه شعله ورپسے ورشی ۔ او مونږ زمکه خوره کړے ده

وَاَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُوْنٍ ﴿۱۹﴾

او مونږ غورزولی دی | په دے کښے | غرونه | او راټوکولی دی مونږ | په دے کښے | هر څيز | مناسب

او مونږ په دے کښے غرونه اچولی دی او په هغې کښے مو هر قسم څيزونه په اندازه راټوکولی دی

وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا مَعَايِشَ وَمَنْ لَّسْتُمْ لَهٗ بِرٰزِقِيْنَ ﴿۲۰﴾ وَاِنْ

او پيدا کړے دی مونږ | تاسو دَ پاره | په دے کښے | سامان دَ ژوند | او چه نهٔ يئ تاسو | هغهٔ ته | رزق ورکوونکی | او نهٔ دے

او په هغې کښے مو تاسو له هم) دَ ژوند سامان جوړ کړے دے او هغه چاله (هم) چه تاسو ورله دَ روزئ انتظام نهٔ کوئ. او

مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ وَمَا نُنَزِّلُهٗٓ اِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ﴿۲۱﴾

هيڅ څيز | مګر | مونږ سره دی | خزانے دَ هغې | او مونږ نهٔ نازلوو هغه | مګر په اندازے | مقرر (سره)

هيڅ څيز داسے نشته چه دَ هغې خزانے مونږ سره نهٔ وی او مونږ هغه په مناسب اندازے سره نازلوو

وَاَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ فَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَسْقَيْنٰكُمُوْهُ

او ليږلی دی مونږ | هواګانے | ډکے (دَ اوبو نه) | پس راوروِلی دی مونږ | له آسمان نه | اوبهٔ | پس څښولی دی مونږ تاسو ته هغه اوبهٔ

او دَ اوبو نه ډک بادونه هم مونږ راليږو، بيا مونږ له آسمان نه اوبه راوروُو ، بيا مونږ هغه اوبهٔ په تاسو څښوو

وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ بِخٰزِنِيْنَ ﴿۲۲﴾ وَاِنَّا لَنَحْنُ نُحْيٖ وَنُمِيْتُ وَنَحْنُ

او نهٔ | يئ تاسو دَ هغې | جمع کوونکی | او بيشکه مونږ | ژوند ورکوو | او مونږ مرګ راولو | او هم مونږ

او دغه اوبهٔ تاسو پخپله راجمع کولے نهٔ شئ ۔ او بيشکه هم مونږ ژوند ورکوو او مرګ راولو او هم مونږ

الْوٰرِثُوْنَ ﴿٢٣﴾ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنْكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا

وارثان یو | او بیشکه | مونږ ته علم دے | دَ وړاندې تیرو خلقو (هم) | له تاسو نه | او بیشکه مونږ ته علم دے

وارثان یو ۔ او کوم خلق چه تاسو نه وړاندې تیر شوی دی مونږ هغه هم پیژنو او کوم چه تاسو نه وروستو راتلونکی دی

الْمُسْتَاْخِرِيْنَ ﴿٢٤﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ ؕ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٥﴾

دَ وروستنو (هم) | او بیشکه | هم ستا رب به | جمع کړی دوی | بیشکه هغه | دَ حکمت خاوند | پوهه دے

هغه هم پیژنو ۔ او بیشکه ستا رب به دا ټول را جمع کړی ۔ هغه دَ حکمت خاوند په هر څهٔ پوهه دے

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿٢٦﴾

او بیشکه | پیدا کړے دے مونږ | انسان | او چے کړنګیدونکے خټے نه | تورے چقړے نه | څخا شوے

او بیشکه مونږ انسان دَ کړنګیدونکے تورے څخا شوے خټے نه پیدا کړے دے۔

وَالْجَآنَّ خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ﴿٢٧﴾ وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ

او پیریان | مونږ پیدا کړی وو | له دے نه وړاندې | دَ اور | ګرم نه | او هر کله چه ووئیل | ستا رب

او پیریان مو دَ دے نه وړاندې دَ بے لوګی اور نه پیدا کړل ، او هر کله چه ستا رب

لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿٢٨﴾

فرښتو ته | بیشکه زهٔ | پیدا کوونکے یم | دَ انسان | دَ او چے کړنګیدونکے خټے نه | تورے چقړے نه | څخا شوے۔

فرښتو ته ووئیل چه بیشکه زهٔ انسان پیدا کوونکے یم دَ کړنګیدونکے تورے څخا شوے خټے نه

فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ

بیا هر کله چه | زهٔ ئے برابر جوړ کړم | او پو کړم | په دهٔ کښے | دَ خپل روح نه | نو تاسو پرېوزئ | دهٔ ته

نو هر کله چه زهٔ ئے برابر جوړ کړم او دَ خپل طرف نه پکښے روح واچوم ، نو تاسو ورته په سجده

سٰجِدِيْنَ ﴿٢٩﴾ فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ﴿٣٠﴾ اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ

سجده کوونکی | پس سجده وکړه | فرښتو | ټولو دَ دوی | په جمع | سوا | دَ ابلیس نه

پریوزئ ، نو ټولو فرښتو ورته په جمع سجده وکړه خو یو ابلیس ونهٔ کړه

اَبٰىٓ اَنْ يَّكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِيْنَ ﴿٣١﴾ قَالَ يٰٓاِبْلِيْسُ مَا لَكَ اَلَّا تَكُوْنَ

دهٔ انکار وکړو | چه شی دے | دَ سجده کوونکو سره | دے فرمائیل | اے ابلیس! | په تا څهٔ وشول | چه ته نهٔ شوے

هغهٔ سجده کوونکو سره دَ شاملیدو نه انکار وکړو . الله تعالیٰ وفرمائیل اے ابلیس! په تا څهٔ وشول چه په

مَعَ السّٰجِدِيْنَ ﴿٣٢﴾ قَالَ لَمْ اَكُنْ لِّاَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهٗ

سره | دَ سجده کوونکو | دهٔ ووئیل | زهٔ (هغه) نهٔ یم | چه سجده وکړم | انسان ته | چه پیدا کړے دے تا هغه

سجده کوونکو کښے شامل نهٔ شوے۔ هغهٔ ووئیل چه دا نهٔ شی کیدے چه زهٔ دا سے انسان ته سجده وکړم

مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿٣٣﴾ قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ رَجِيْمٌ ﴿٣٤﴾

دَ چے کړنګیدونکے خټے نه | دَ تورے چقړے نه | څخا شوے | دے فرمائیل پس ووځه | دلته نه | پس بیشکه ته | ړټلے شوے یې

هغه تا دَ کړنګیدونکے تورے څخا شوے خټے نه پیدا کړے دے الله وفرمائیل دلته (جنت) نه ووځه بیشکه ته ړټلے شوے یې۔

وَّاِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ ﴿۳۵﴾ قَالَ رَبِّ فَاَنْظِرْنِيْٓ

او بیشکه | په تا باندې | لعنت دے | تر ورځے د جزا | وے وئیل | اے زماربه ! | پس مهلت راکړه ما ته

او په تا به تر قیامته لعنت وریږي ، هغهٔ ووئیل اے زماربه ! (ښه ده) ما ته د حشر

اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿۳۶﴾ قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ﴿۳۷﴾ اِلٰى يَوْمِ

تر هغې ورځے چه | (مړي) به وُچتولے شي | وُفرمائیل | بیشکه ته | له مهلت ورکړے شوو نه يې | تر هغې ورځے پورے

تر ورځے پورے مهلت راکړه . (الله ورته) وفرمائیل (ښه ده) تا ته مهلت دے ، تر هغې ورځے پورے

الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ﴿۳۸﴾ قَالَ رَبِّ بِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ لَاُزَيِّنَنَّ

چه (د هغې) وخت مقرر دے | دهٔ ووئیل | اے زماربه ! | په سبب د دے چه تا زهٔ گمراه کړم | نو زهٔ به ضرور ښائسته کړم

چه د هغې وخت (ما ته) معلوم دے . دهٔ ووئیل چه اے زماربه ! لکه څنګه چه تا زهٔ گمراه کړے یم نو زهٔ به

لَهُمْ فِى الْاَرْضِ وَلَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۳۹﴾ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ

دوی ته (ګناه) | په زمکه کښے | او زهٔ به ضرور گمراه کړم دوی | ټول | مګر ستا بندګان | له هغو نه

هم د غسے دوئ ته د مزکے په مخ (ګناهونه) ښائسته ښکاره کوم او ټول به خامخا ګمراه کوم سوا ستا د هغه بندګانو

الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۴۰﴾ قَالَ هٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيْمٌ ﴿۴۱﴾ اِنَّ عِبَادِيْ

چه مخلص دي | وُفرمائیل | هم دا ده | لار ده | ما پورے | نیغه | بیشکه (کوم چه) | زما بندګان (دي)

نه چه مخلص دي ، الله وفرمائیل ما ته د رارسیدو هم دا نیغه لار ده ، زما په بندګانو به یقینًا

لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنٌ اِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ﴿۴۲﴾ وَاِنَّ

نشته دے | ستا | په هغوي باندې | څهٔ غلبه | مګر څوک چه | پیروي وکړي ستا | له ګمراهانو نه | او بیشکه

ستا زور نه چلیږي ـــــ مګر په هغه خلقو چه پخپله ستا پیروي کوي او ګمراه شوي وي او دوزخ

جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۴۳﴾ لَهَا سَبْعَةُ اَبْوَابٍ لِكُلِّ بَابٍ

دوزخ | ځائے د وعدے دے د دوي | د ټولو | د دے | اووهٔ (۷) | دروازے دي | د هرے دروازے د پاره

یقینًا د دے ټولو د وعدے ځائے دے ، د دے اووهٔ دروازے دي ، د هرے دروازے

مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُوْمٌ ﴿۴۴﴾ اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿۴۵﴾

له دوی نه | برخه ده | جدا کړے شوے | بیشکه | پرهیزګاران به | په باغونو | او چینو کښے (دی)

د پاره په دوئ کښے جدا جدا برخه مقرر ده . بیشکه پرهیزګاران به په باغونو او چینو کښے وُسیږي

اُدْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ اٰمِنِيْنَ ﴿۴۶﴾ وَنَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ

تاسو داخل شئ په دے کښے | په سلامتئ سره | په امن سره | او مونږ به وُباسو | هغه څهٔ | چه د دوی په سینو کښے دی

(وُبه وئیلے شي) چه تاسو په دے کښے په امن او سلامتئ سره داخل شئ ، او مونږ د دوئ د سینو نه چه څهٔ (بغض)

مِّنْ غِلٍّ اِخْوَانًا عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيْنَ ﴿۴۷﴾ لَا يَمَسُّهُمْ فِيْهَا

له کینے نه | (دوی به) ورونړه ورونړه | په تختونو (ناست) | یو بل ته مخامخ | نهٔ به رسي دوی ته | په دے کښے

کینه دی وُبه باسو چه د ورونړو په شان به یو بل ته مخامخ په تختونو ناست وي ، په هغه ځائے کښے به پرے

نَصَبٌ وَّمَا هُمْ مِّنْهَا بِمُخْرَجِيْنَ ﴿٤٨﴾ نَبِّئْ عِبَادِيْٓ

څۀ تکلیف | او نۀ به | دوی | دَ دے نه | ویستلے شی | خبرورکړه | زما بندګانو ته

څۀ تکلیف نۀ راځی او نۀ به ترے نه چرے بهر ویستلے شی۔ (اے نبی) زما بندګانو ته خبرورکړه چه زۀ

اَنِّيْٓ اَنَا الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿٤٩﴾ وَاَنَّ عَذَابِيْ هُوَ الْعَذَابُ

چه بیشکه زۀ | بخښونکے | مهربان یم | او بیشکه | زما عذاب | هم دا | عذاب

ډیر بخښونکے زیات رحم کونکے یم۔ او زما عذاب هم ډیر دردناک عذاب

الْاَلِيْمُ ﴿٥٠﴾ وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ ﴿٥١﴾ اِذْ دَخَلُوْا

دردورکونکے دے | او خبرورکړه دوی ته | دَ میلمنو | دَ ابراهیم | هرکله چه دوی داخل شول

دے۔ او دوی ته دَ ابراهیم علیه السلام دَ میلمنو قصه واوروه، هرکله چه دوی هغۀ له

عَلَيْهِ فَقَالُوْا سَلٰمًا ؕ قَالَ اِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُوْنَ ﴿٥٢﴾ قَالُوْا

په دۀ | نو دوی ووئیل | سلام | (ابراهیم) ووئیل | بیشکه مونږ | له تاسو نه | ویریږو | دوی ووئیل

ورغلے نو دوی سلام وکړو، (ابراهیم) ووئیل چه مونږ خو له تاسو نه ویریږو۔ دوی ووئیل چه

لَا تَوْجَلْ اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ ﴿٥٣﴾ قَالَ اَبَشَّرْتُمُوْنِيْ

مۀ ویریږه | بیشکه مونږ | زیرے درکوو تا ته | دَ هلک | هوښیار | دۀ ووئیل | آیا تاسو زیرے راکوئی ما ته

چه ته مۀ ویریږه مونږ تا ته دَ یو هوښیار ځوئے دَ پیدا کیدو زیرے درکوو۔ ابراهیم علیه السلام ووئیل چه تاسو

عَلٰٓى اَنْ مَّسَّنِيَ الْكِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ ﴿٥٤﴾ قَالُوْا

سره دَ دے چه | رسیدلے دے ما ته | بوډاوالے | نو دَ څۀ | زیرے راکوئی تاسو | دوی ووئیل

ماله په دے حال کښے زیرے راکوئی چه زۀ بوډا شوے یم پس دَ څۀ خبرے زیرے راکوئی۔ فرښتو ووئیل

بَشَّرْنٰكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ ﴿٥٥﴾ قَالَ وَمَنْ

زیرے درکوو مونږ تا ته | په رښتیا | پس مۀ کیږه ته | له نا اُمیده خلقو نه | دۀ ووئیل | او څوک

مونږ تا له دَ یو رښتینی خبر زیرے درکوو، نو ته نا اُمیده کیږه مۀ۔ ابراهیم علیه السلام ووئیل، دَ

يَقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖٓ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ ﴿٥٦﴾ قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ

نا امیده کیږی | له رحمت نه | دَ رب خپل | سوا دَ ګمراهانو نه | دۀ ووئیل | پس څۀ | مدعا ده ستاسو

ګمراهانو نه سوا څوک دی چه دَ خپل رب نه به نا اُمیده کیږی دۀ ووئیل چه اے فرښتو! تاسو

اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٥٧﴾ قَالُوْٓا اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ ﴿٥٨﴾

اے | رالیږلے شوو (فرښتو) | دوی ووئیل | بیشکه مونږ | رالیږلی شوی یُو | طرف دَ یو قوم ته | چه مجرمان دی

به څۀ پسے راغلی یئ؟ دوی ووئیل چه مونږ دَ نافرمانو دَ یو قوم طرف ته رالیږلے شوی یُو

اِلَّآ اٰلَ لُوْطٍ ؕ اِنَّا لَمُنَجُّوْهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٥٩﴾ اِلَّا امْرَاَتَهٗ قَدَّرْنَآ

سوا دَ لوطؑ دَ خاندان نه | بیشکه | مونږ به خامخا نجات درکړو دوی | ټولو ته | سوا | دَ دۀ دَ ښځے نه | مونږ مقرر کړے دَ

سوا دَ لوطؑ دَ کور والو نه، مونږ به دوی ټول بچ کړو، سوا دَ هغۀ دَ ښځے نه چه مونږ فیصله کړے ده چه هغه

إِنَّهَا لَمِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۶۰﴾ فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ۣالْمُرْسَلُوْنَ ﴿۶۱﴾

بیشکه هغه | به له پاتے کیدونکی نه وی | پس هرکله چه | را غلے | خاندان دَ لوط (ته) | رالیږلے شوے (فرښتے)

بیشکه وروستو پاتے کیدونکو نه ده. پس هرکله چه فرښتے دَ لوط علیه السلام کور ته راغلے

قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿۶۲﴾ قَالُوْا بَلْ جِئْنٰكَ بِمَا

ده ووئیل | بیشکه تاسو | خلق یئ | نا آشنا | دوی ووئیل | (نه) بلکه | راوړے دے مونږ تا ته | هغه (عذاب)

ده ورته ووئیل تاسو خو نا آشنا خلق ښکارئ. دوی ورته ووئیل چه نه بلکه مونږ خو درته هغه څیز

كَانُوْا فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ ﴿۶۳﴾ وَاَتَيْنٰكَ بِالْحَقِّ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۶۴﴾

چه په هغے کښے به | دوی شک کولو | او راوړے دے مونږ تا ته | رښتینے (حکم) | او بیشکه مونږ | رښتینی یو

راوړے دے چه دوئی به په کښے شک کولو. او مونږ تا ته یقینی واقع کیدونکے څیز راوړے دے او مونږ بالکل رښتینی یو.

فَاَسْرِ بِاَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَاتَّبِعْ اَدْبَارَهُمْ

نو اُوباسه | خپل کور والا | په یوه برخه کښے | دَ شپے | او ته ځه | دَ دوی نه وروستو

نو دَ شپے په یوه برخه کښے خپل کور والا اُوباسه او ته د دوی وروستو وروستو ځه

وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ وَّامْضُوْا حَيْثُ تُؤْمَرُوْنَ ﴿۶۵﴾

او شا ته دِ نه ګوری | له تاسو نه | هیڅوک | او لاړ شئ | دَ کوم ځائے | چه تاسو ته حکم کولے شی

او په تاسو کښے دِ هیڅوک شا ته نه ګوری. او دَ کوم ځائے چه درته حکم شوے دے هلته لاړ شئ.

وَقَضَيْنَآ اِلَيْهِ ذٰلِكَ الْاَمْرَ اَنَّ دَابِرَ هٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوْعٌ

او مونږ فیصله ولیږله | طرف دَ هغهٔ ته | دَ دے خبرے | چه جرړه | دَ دے خلقو | به پریکړے شی

او مونږ دَ هغهٔ (لوط ؑ) طرف ته دَ دے خبرے فیصله ولیږله چه صبا راخیږی نو دَ دے خلقو به جرړے

مُّصْبِحِيْنَ ﴿۶۶﴾ وَجَآءَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿۶۷﴾ قَالَ اِنَّ

دَ صبا کیدو سره | او راغلل | ښار والا | چه خوشحالی ئے کوله | وے وئیل | بیشکه

غوڅے شوی دی او (په دے کښے) دَ ښار خلق خوشحاله خوشحاله راغلل. (لوط ؑ) ووئیل چه دا خلق

هٰٓؤُلَآءِ ضَيْفِيْ فَلَا تَفْضَحُوْنِ ﴿۶۸﴾ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخْزُوْنِ ﴿۶۹﴾

دا خلق | زما میلمانه دی | پس تاسو ما مهٔ رسوا کوئ | او ووېرېږئ | دَ الله نه | او ما مهٔ بے عزته کوئ

خو زما میلمانه دی پس تاسو ما مهٔ شرموئ. او دَ الله تعالیٰ نه ویرېږئ او زما بے عزتی مهٔ کوئ

قَالُوْٓا اَوَلَمْ نَنْهَكَ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۰﴾ قَالَ هٰٓؤُلَآءِ بَنٰتِيْٓ

دوی ووئیل | آیا مونږ ته نهٔ وے منع کړے | دَ ټولے دنیا (دَ مرستے) نه | ده ووئیل | دا | زما لونړه دی (دوی سره نکاح وکړئ)

دوی ووئیل آیا مونږ ته دَ ټول جهان (دَ حمایت) نه نهٔ یئے منع کړے؟ (لوط ؑ) ووئیل دا زما لونړه دی (دوی سره نکاح وکړئ)

اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ﴿۷۱﴾ لَعَمْرُكَ اِنَّهُمْ لَفِيْ سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۷۲﴾

که چرے | یئ تاسو | کوونکی | ستا په ژوندم دِ قسم وی | بیشکه دوی | په خپله نشه کښے | ړانده کانړهٔ وو

که تاسو خامخا څهٔ کول غواړئ (اے نبی ﷺ) ستا په ژوندم دِ قسم وی چه هغوی په خپله نشه کښے ړانده کانړهٔ شوی وو

فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُشْرِقِيْنَ ﴿۷۳﴾ فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا

پس ونیول هغوئ | هیبت ناک آواز | په وخت د نُور ختو کښې | پس کړه مونږ | دَدے پاسنۍ برخه | دَدے ښکته

نو نُور راختو سره دوی یوے هیبتناکے چغے ونیول ۔ بیا مونږ دَدے کلو پاسنۍ برخه لاندِ کړله

وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيْلٍ ﴿۷۴﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

او مونږ وُورَوَل | په دوی باندِ | کانړی | له قِسمه کانړو ته | بیشکه | په دے کښې

او مونږ په دوی باندِ دَ کنکرو کانړی وُورول ، یقیناً په دِے کښې دَ غور او

لَاٰيٰتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِيْنَ ﴿۷۵﴾ وَاِنَّهَا لَبِسَبِيْلٍ مُّقِيْمٍ ﴿۷۶﴾ اِنَّ

نخښے دی | غور او فکر کوونکو دَ پاره | او بیشکه دَ غه (کلے) دے | په یوه نیغه لاره باندِ | بیشکه

فکر کوونکو دَ پاره نخښے دی ـ او بیشکه هغه (کلے) په نیغه آباده لاره باندِ (پروت) دے ، بیشکه

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۷۷﴾ وَاِنْ كَانَ اَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ

په دِے کښې | نخښے دی | مؤمنانو دَ پاره | او بیشکه وُو | اوسیدونکی دَ بنړ

په دے کښې دَ ایمان والوُ دَ پاره نخښے دی ـ او دَ بنړ اوسیدونکی (یعنی دَ شعیبؑ دَ قوم خلق)

لَظٰلِمِيْنَ ﴿۷۸﴾ فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ ۘ وَاِنَّهُمَا لَبِاِمَامٍ مُّبِيْنٍ ﴿۷۹﴾

ظالمان | پس بدله واخسته مونږ | له دوی نه | او بیشکه دواړه (کلی) | په ښکاره لاره (پرانه) دی

هم ډیر ظالمان وُو ـ او مونږ له دوی نه بدله واخسته او دا دواړه (برباد شوی) کلی په لوبه لاره باندِ پرانه دی

وَلَقَدْ كَذَّبَ اَصْحٰبُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۸۰﴾ وَاٰتَيْنٰهُمْ اٰيٰتِنَا

او بیشکه دروغ وګڼړل | اوسیدونکو | دَ حجر (وادئ) | پیغمبران | او ورکړے مونږ دوی ته | خپلے نخښے

او دَ حجر (دَ وادئ) اوسیدونکو خلقو هم پیغمبران دروغژن وګڼړل او مونږ دوی ته هم خپلے نخښے ورکړے

فَكَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ﴿۸۱﴾ وَكَانُوْا يَنْحِتُوْنَ مِنَ الْجِبَالِ

پس دوی وُو | له هغے نه | مخ اړوونکی | او دوی | به تراشل | دَ غرونو نه

نو هغے خلقو ترے نه مخونه وګرځول ـ او دوی به په غرونو کښې کورونه کنستل او

بُيُوْتًا اٰمِنِيْنَ ﴿۸۲﴾ فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِيْنَ ﴿۸۳﴾

کورونه | چه په امن وُسیږی | نو وُنیول دوی (هم) | یوے چغے | په وخت دَ صبا کښې

او بے غمه به په کښې اوسیدل ـ نو دوی (هم) دَ سحر وخت کښې یوے چغے وُنیول

فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۸۴﴾ وَمَا خَلَقْنَا

پس په کار رانغلو | دَ دوی | هغه (مال) چه | دوی ګټلے وو | او نهٔ دی پیدا کړی مونږ

نو څهٔ چه ئے ګټلی وو هغه ئے هیڅ په کار رانغلل او مونږ آسمانونه او

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ وَاِنَّ

آسمانونه | او زمکه | او څهٔ چه | دَ دے دواړو په مینځ کښې دی | مګر په حق سره | او بیشکه

زمکه او څهٔ چه دَ دِے دواړو په مینځ کښې دی بے کاره نهٔ دی پیدا کړی ، او بیشکه

السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيْلَ ﴿۸۵﴾ اِنَّ رَبَّكَ

قیامت | خامخا راتلونکې دې | پس مخ واړوه | مخ اړول | په ښهٔ طریقه | بیشکه | رب ستا

قیامت خامخا راتلونکې دے ، نو تهٔ په ښهٔ طریقه دَ دوی نه مخ وګرځوه ، بیشکه ستا رب دَ هر څیز

هُوَالْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۶﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ

هم دے دے پیدا کونکے | پوهه | او بیشکه مونږ درکړی دی تاته | اووه (آیتونه) | چه بیا بیا لوستلے شی

خالق دے په هر څهٔ پوهه دے ـ او مونږ تاته داسے اووهٔ (آیتونه) درکړی دی چه مکرر لوستلے شی

وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ ﴿۸۷﴾ لَاتَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ اِلٰى مَا مَتَّعْنَا

او قرآن | عظمت والا | مهٔ غوړوه | خپل نظرونه | طرف دَ هغه څهٔ ته | چه فائده ورکړه مونږ

او لوئے قرآن (هم درکړے دے) تهٔ خپلے سترګے قدرله هم په هغه څیزونو پسے مهٔ پورته کوه چه مونږ

بِهٖٓ اَزْوَاجًا مِّنْهُمْ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ

په هغے | جماعتونو ته | له کافرانو نه | او مهٔ غمژن کیږه | په دوی باندے | او راښکته کړه

دَ دے (کافرانو) مختلفو قسمونو له ورکړی دی ، او دَ دوئ په حقله غم مهٔ کوه (دوئ پریږده) او ایماندارو

جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۸۸﴾ وَقُلْ اِنِّيْٓ اَنَا النَّذِيْرُ الْمُبِيْنُ ﴿۸۹﴾

مټے خپلے | ایمان والو دَ پاره | او ووایه | بیشکه زهٔ یم | ویروونکے | ښکاره

ته خپل ځان نرم کړه ـ او داووایه چه زهٔ خو بس څرګند ویروونکے یم ـ

كَمَآ اَنْزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِيْنَ ﴿۹۰﴾ الَّذِيْنَ جَعَلُوا الْقُرْاٰنَ

په شان دَ هغه (عذاب) چه مونږ نازل کړے وو | په هغه تقسیمونکو (کافرانو) | کوم چه | کړے وُو | قرآن

لکه څنګه چه مونږ (عذاب) نازل کړو په هغه قسم خوړونکو باندے چا چه قرآن ټوټے ټوټے

عِضِيْنَ ﴿۹۱﴾ فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۹۲﴾ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۹۳﴾

ټوټے ټوټے | پس قسم دے په رب ستا | مونږ به ضرور تپوس کوو دوی | ټولو نه | دَ هغه عملونو په حقله چه دوی به کول

کړے وُو ، نو ستا په رب مے دِ قسم وی چه مونږ به دَ ټولو نه تپوس کوو دَ هغه کارونو په حقله چه دوی کول

فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۹۴﴾

پس صفا صفا اَوروه | هغه څهٔ چه | تاته ئے حکم درکولے شی | او لرے وُسیږه | له مشرکانو نه

نو تاته چه دَ کوم کار حکم شوے دے هغه صفا صفا آوروه او دَ مشرکانو پروا مهٔ کوه ـ

اِنَّا كَفَيْنٰكَ الْمُسْتَهْزِءِيْنَ ﴿۹۵﴾ الَّذِيْنَ يَجْعَلُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا

بیشکه مونږ کافی یُو تا دَ پاره | دَ ټوقو کوونکو (خلاف) | کوم خلق چه | جوړوی | الله سره | معبودان

مونږ تاله دَ ملنډو کوونکو کسانو په مقابله کښے کافی یُو او هغه خلق چه دَ الله تعالیٰ سره بل معبود

اٰخَرَ ۚ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۹۶﴾ وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّكَ يَضِيْقُ صَدْرُكَ

نور | پس زر به | دوی ته معلوم شی | او بیشکه مونږ پوهیږو | چه تنګیږی | ستا سینه (زړه)

هم منی نو ډیر زر به ورته (حقیقت) معلوم شی ـ او مونږ ته ښهٔ معلومه ده چه دَ دوی په وینا کانو

بِمَا يَقُوْلُوْنَ ﴿۹۷﴾ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ

دَ هغه څهٔ نه | چه دوی وائی | پس پاکی بیانوه | په تعریف سره | دَ خپل رب | او شه

باندِ ستا زړهٔ تنګیږی نو ته دَ خپل رب په تعریف سره پاکی بیانوه ، او په سجده کوونکو

مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ﴿۹۸﴾ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَاْتِيَكَ الْيَقِيْنُ ﴿۹۹﴾

له سجده کوونکو نه | او عبادت کوه | دَ خپل رب | تر دے چه | راشی تا ته | یقینی خبره (یعنی مرګ)

کښے شامل اوسه او دَ خپل رب عبادت کوه ، تر دے چه یقین درته (مخے ته) راشی

رکوع ۲

سُوْرَةُ النَّحْلِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ثَمَانٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوْعًا

سورۂ نحل په مکه کښے نازل شو په دے کښے | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | ۱۲۸ اٰیتونه او ۱۶ رکوع ګانے دی

شروع کوم دَ الله په نوم سره چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

اَتٰٓى اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى

راغے | حکم دَ الله | پس نهٔ تلوی مهٔ کوه دَ هغے د پاره | هغه پاک دے | او اُوچت دے

دَ الله تعالیٰ حکم راغے نو تاسو دے دَ پاره تلوار مهٔ کوئی ، هغه پاک دے او دَ هغه څیزونو نه (ډیر)

عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۱﴾ يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ

له هغه څهٔ نه | چه دوی شریک جوړوی | هغه نازلوی | فرښتے | په وحی سره

اوچت دے چه دوی ئے ورسره شریکوی ، هغه فرښتے دَ وحی سره په خپل حکم

مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ اَنْ اَنْذِرُوْٓا

په خپل حکم سره | په چا چه وغواړی | له خپلو بندګانو نه | چه | اُویروئ

رانازلوی په خپلو بندګانو کښے چه په چا باندِ وغواړی چه تاسو اُویروئ

اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاتَّقُوْنِ ﴿۲﴾ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

دَ دے نه چه | نشته بل معبود | سوا زما نه | پس هم له ما نه ووېرېږئ | پیدا کړل هغهٔ | آسمانونه

چه زما نه سوا بل څوک معبود نشته پس هم له ما نه ووېرېږئ ۔ هغهٔ آسمانونه او زمکه

وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۳﴾ خَلَقَ

او زمکه | په حکمت سره | لوئے دے | له هغه څهٔ نه | چه دوی شریک جوړوی | پیدا کړو هغهٔ

په حکمت سره پیدا کړی دی ، هغه ډیر اوچت دے دَ دوی دَ شریکانو نه ۔ هغهٔ انسان

الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ﴿۴﴾

انسان | له منئ نه | پس ناګهانه | هغه شو | جګړه مار | ښکاره

دَ یو څاڅکی نه پیدا کړو ، بیا هغه په ښکاره (دَ خدائے په باره کښے) په جګړه شو

وَالْاَنْعَامَ خَلَقَهَا ۚ لَكُمْ فِيْهَا دِفْءٌ وَّمَنَافِعُ وَمِنْهَا

او څاروی | هغهٔ پیدا کړل دا | تاسو دَ پاره | په هغے کښے | ګرمه جامه | او فائدے دی | او ځنے له هغے نه

او هغهٔ څاروی پیدا کړل چه په هغے کښے تاسو له ګرمه جامه هم ده او (نورے) فائدے هم دی او دَ هغے نه

تَأْكُلُوْنَ ۝٥ وَلَكُمْ فِيْهَا جَمَالٌ حِيْنَ تُرِيْحُوْنَ وَحِيْنَ

تاسو خورئ | او تاسو د پاره | په دے کښے | ښائست (دے) | کوم وخت چه | ماښام ئے واپس راولئ | او هر کله چه

تاسو (قسم قسم) خوراکونه کوئ او تاسو د پاره په دے کښے ښائست او شان دے چه ماښام ئے (کورته) واپس راولئ

تَسْرَحُوْنَ ۝٦ وَتَحْمِلُ اَثْقَالَكُمْ اِلٰى بَلَدٍ لَّمْ تَكُوْنُوْا بٰلِغِيْهِ

د صبا ئے بوځئ | او هغوی وړی | بارونه ستاسو | هغه ښار طرف ته | چه نهٔ وئ تاسو | رسیدونکی هغے ته

او کله چه سحر ئے څرین لوته پریږدئ او هغوی ستاسو درانهٔ بوجونه داسے لرے لرے ښارونو ته اوړی چه تاسو ته

اِلَّا بِشِقِّ الْاَنْفُسِ ؕ اِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝٧ وَّالْخَيْلَ

مګر په مشقت | د ځانونو | بیشکه | ستاسو رب | ډیر مهربان | رحم کوونکے دے | او (پیدائے کړل) اسونه

بغیر د ډیر مشقت نه رسیدلے نهٔ شوئ، بیشکه ستاسو رب مهربان رحم کوونکے دے . او هغهٔ اسونه او

وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا وَزِيْنَةً ؕ وَيَخْلُقُ مَا

او قچرے | او خرونه | چه تاسو سوارهٔ شئ په هغے باندے | او (هغه) ښائست دی | او هغه پیدا کوی | هغه څهٔ

قچرے او خرونه پیدا کړی دی چه تاسو پرے سورلئ کوئ او ښائست موهم دے ، او هغه داسے څیزونه

لَا تَعْلَمُوْنَ ۝٨ وَعَلَى اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ ؕ

چه تاسو نه پوهیږئ . | او الله ته (رسیږی) | نیغه | لار | او په دے کښے (ځنے لارے) | کږے دی

پیدا کوی چه تاسو پرے نهٔ پوهیږئ او نیغه لار خو الله تعالیٰ ته وررسیږی او په دے کښے ځنے لارے کږے هم دی

وَلَوْ شَآءَ لَهَدٰىكُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝٩ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ

او که چرے هغهٔ غوښتلے | نو لارے به ئے ښودلے وه تاسو | ټولو ته | هم هغه دے | چا چه | راکوزوے | له آسمان نه

او که هغهٔ غوښتلے نو تاسو ټولو ته به ئے هدایت کړے وو . الله تعالیٰ داسے ذات دے چا چه له آسمان نه تاسو د پاره

مَآءً لَّكُمْ مِّنْهُ شَرَابٌ وَّمِنْهُ شَجَرٌ فِيْهِ تُسِيْمُوْنَ ۝١٠

اوبهٔ | تاسو د پاره | له دے نه | څښل دی | او له دے نه | (زرغونیږی) اونے | چه په دے کښے | تاسو څروئ (څاروی)

اوبهٔ راکوزوے، هم له دے نه تاسو څښئ او هم له دے نه اونے زرغونیږی چه تاسو په کښے څاروی څروئ

يُنْۢبِتُ لَكُمْ بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُوْنَ وَالنَّخِيْلَ

هغه زرغونوی | تاسو د پاره | په دے (اوبو) سره | فصلونه | او زیتون | او د قجورے (اونے)

او د دے (اوبو) په ذریعه تاسو د پاره فصلونه ، زیتون ، قجورے ، انګور

وَالْاَعْنَابَ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً

او انګور | او د هر قسم | میوے | بیشکه | په دے کښے | نخښنه ده

او د هر قسم نورے میوے زرغونوی ، بیشکه په دے کښے د غور او فکر کوونکو

لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝١١ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۙ وَالشَّمْسَ

هغه قوم له | چه فکر کوی | او تابع ئے کړله | تاسو د پاره | شپه | او ورځ | او نمر

د پاره غټه نخښنه پرته ده . او هغهٔ تاسو د پاره شپه او ورځ تابع کړل ، او نمر

وَالْقَمَرَ ۚ وَالنُّجُوْمُ مُسَخَّرٰتٌۢ بِاَمْرِهٖ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

اوسپوږمۍ | او ستوري (هم) | تابع دي | دَ هغهٔ په حکم | بیشکه | په دے کښے

اوسپوږمۍ هم ـ او ستوري هم دَ هغهٔ دَ حکم تابع دي ـ بیشکه په دے کښے ډیرے نخښے

لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ⑫ وَمَا ذَرَاَ لَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُخْتَلِفًا

نخښے دي | هغو خلقو دَ پاره | چه عقل لري | او هٔغه چه | هغهٔ پیدا کړل تاسو له | په زمکه کښے | مختلف دي

پرتے دي هغه چاله چه دَ عقل نه کار اخلي ـ او کوم رنګ په رنګ څیزونه چه هغهٔ په زمکه کښے پیدا کړي دي

اَلْوَانُهٗ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ⑬ وَهُوَ الَّذِيْ

رنګونه دَ دے | بیشکه | په دِے کښے | نخښه ده | هغو خلقو دَ پاره | چه غور کوي | او هم هغه دے | کوم چه

هغه هم تاسو دَ پاره دي، بیشکه په دے کښے سوچ کوونکو خلقو دَ پاره نخښے دي ـ او هم هغه دے چا چه

سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَاْكُلُوْا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا وَّتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً

تابع ئے کړو | دریاب | چه تاسو خورئ | له دے نه | غوښه | تازه | او چه تاسو راوباسئ له دے نه | کالے

سمندر تابع کړو چه تاسو له دے نه (دَ کبانو) تازه غوښه وخورئ او تاسو له دے نه کالی راوباسئ چه

تَلْبَسُوْنَهَا ۚ وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا

چه تاسو ئے اچوئ | او ته وینے | کشتۍ | (او به) شلوي روانے وي | په دے کښے | او چه تاسو لټوئ

تاسو ئے اچوئ او ته ګورے چه کشتۍ (دَ دریاب) او بهٔ شلوي (او روانے وي) دا ځکه چه تاسو دَ الله

مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ⑭ وَاَلْقٰى فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ

دَ هغهٔ فضل | او چه تاسو | شکر کوئ | او هغهٔ وغورزول | په زمکه کښے | غرونه

فضل تلاش کړئ او چه دَ هغهٔ شکر اوباسئ ـ او په زمکه کښے ئے دَ غرونو میخونه کیښودل چه

اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَاَنْهٰرًا وَّسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ⑮ وَعَلٰمٰتٍ ؕ

چه و(نه) زغږوي | تاسو | او دریابونه | او لارے | چه تاسو | لار ته بیا مومئ | او هٔغه نورے نخښے (هم)

تاسو (بوا طرف ته) ونهٔ زغږي او دریابونه او لارے ئے جوړے کړے چه تاسو لار بیا مومئ او (دغه شان نورے هم)

وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُوْنَ ⑯ اَفَمَنْ يَّخْلُقُ كَمَنْ

او په ستورو (هم) | دوي لار ه مومي | پس آیا هغه (الله) چه | پیدا کوي | په شان دَ هغه چا دے

ډیرے نخښے ئے جوړے کړے او دَ ستورو په ذریعه خلق لار ے بیا مومي ـ پس آیا څوک چه پیدا کول کوي دَ هغه چا په شان

لَّا يَخْلُقُ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ⑰ وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ

چه هیڅ هم نهٔ پیدا کوي ؟ | بیا آیا تاسو غور نهٔ کوئ ؟ | او که چرے | تاسو شمیرل غواړئ | دَ الله نعمتونه

کیدے شي چه هیڅ نهٔ پیدا کوي نو آیا تاسو (دومره قدر له) غور نهٔ کوئ ؟ او که تاسو دَ الله دَ نعمتونو شمیره کول غواړی

لَا تُحْصُوْهَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑱ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ

نو وبه نهٔ شمیرلے شئ هغه | بیشکه الله | بخښونکے | مهربان دے | او الله | پوهه دے | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے پټوئ

نو دَ هغے شمیره نهٔ شئ کولے بیشکه الله بخښونکے ډیر رحم کوونکے دے او الله تعالیٰ ته معلوم دي څهٔ چه تاسو پټوئ

وَمَا تُعْلِنُوْنَ ⑲ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

او په هغه څهٔ چه تاسو ئے ښکاره کوئ | او هغه څيزونه | چه دوی ئے بلی | سوا دَ الله نه

او هغه هم چه تاسو ئے ښکاره کوئ ـ او کوم چه دوی دَ الله تعالیٰ نه سوا بلی، هغوی

لَا يَخْلُقُوْنَ شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ ⑳ اَمْوَاتٌ غَيْرُ اَحْيَآءٍ

هغوی نهٔ پيدا کوی | هيڅ څيز | او هغوی خپله پيدا کولے شی | مړهٔ دی | نهٔ دی ژوندی

هيڅ هم نهٔ شی پيدا کولے بلکه هغوئ پخپله پيدا کړے شوی دی، هغه خو مړهٔ دی، ژوندی نهٔ دی

وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ㉑ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ

او دوی نهٔ پوهيږی | چه کله به | دوی راپورته کولے شی | ستاسو معبود (خو) | معبود | يو دے

او دوی نهٔ پوهيږی چه کله به دوی راپورته کولے شی ـ ستاسو معبود هم يو معبود دے

فَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ قُلُوْبُهُمْ مُّنْكِرَةٌ

پس کوم خلق چه | ايمان نهٔ راوړی | په آخرت | زړونه دَ دوی | منکر دی

نو څوک چه په آخرت باندې يقين نهٔ لری دَ هغوئ زړونه منکر دی،

وَّهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ ㉒ لَا جَرَمَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا

او دوی | غرور کوی | يقينًا | چه الله | پوهيږی | په هغه څهٔ

او هغوئ ځان ته غاوره وی ـ يقينی خبره ده چه الله تعالیٰ پوهيږی په هغه څهٔ چه

يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ ㉓

چه دوی ئے پټوی | او په هغه څه | چه دوی ئے ښکاره کوی | بيشکه هغه | نهٔ خوښوی | غرور کوونکی

دوی ئے پټوی او په هغه هم چه دوی ئے ښکاره کوی بيشکه هغه مغرور خلق نهٔ خوښوی ـ

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ مَّاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوْٓا

او هر کله چه | وويلے شی | دوی ته | څهٔ | نازل کړی دی ؟ | ستاسو پروردګار | نو دوی وائی

او هر کله چه دَ دوی نه تپوس وُشی چه ستاسو رب څهٔ را نازل کړی دی ـ نو وائی چه (بس هم هغه

اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ㉔ لِيَحْمِلُوْٓا اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَّوْمَ

قصے دی | دَ پخوانو خلقو | چه دوی به وُچتوی | خپل پيټی (دَ ګناهونو) | پوره پوره | په ورځ

دَ پخوانو خلقو (بے سنده) قصئ ـ (نتيجه به ئے داوی) چه دَ قيامت په ورځ به دَ خپلو ګناهونو پيټی هم

الْقِيٰمَةِ وَمِنْ اَوْزَارِ الَّذِيْنَ يُضِلُّوْنَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ اَلَا سَآءَ

دَ قيامت | او څهٔ | پيټی | دَ هغو خلقو | چه دوی ئے ګمراه کوی | بغير دَ علم نه | واوره! | بد دی

پوره وُچتوی او دَ هغو خلقو دَ ګناهونو پيټی هم، چه دوئ ئے بغير دَ علم نه ګمراه کړی دی، خو مره خراب دے

مَا يَزِرُوْنَ ㉕ قَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَاَتَى اللّٰهُ

هغه څهٔ | چه دوی ئے وُچتوی | بيشکه تدبير کړے وو | هغو خلقو چه | له دوی نه وړاندې وو | پس راغے (حکم دَ) الله

دغه پيټے چه دوی به ئے وچتوی ـ دَ دوی نه وړاندې خلقو هم (د حق خلاف) تدبيرونه وکړل پس دَ دوی په

بُنْيَانَهُمْ مِّنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِنْ فَوْقِهِمْ

دَدوی دَعمارت (دَغورزولو) | دَبنیادونو نه | پس راپریوتلو | په دوی باندې | چت | دَپاسه دَدوی

په عمارت دَالله تعالیٰ (عذاب) دَبنیادونو نه راغی ، پس چت دَدوی دَپاسه نه راپریوتلو

وَأَتٰهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾ ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُخْزِيهِمْ

اوراغی په دوی | عذاب | دَکوم ځائے نه چه | دَدوی خیال نه وو | بیا به دَقیامت په ورځ | دوی رسوا کړی

او په دوی دَداسے طرف نه عذاب راغی چه دَدوی پرے گمان هم نهٔ وو بیا به ئے الله دَقیامت په ورځ هم

وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَاءِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ

او دُبه وائی | کوم ځائے دی | زما شریکان | هغه چه | تاسو به | جګړه کوله (مومنانوسره) | دَهغے په باره کښے

رسوا کړی، او رته به وائی چه اوس وُښایئی چه زما هغه شریکان کوم ځائے دی؟ چه تاسو به دَهغوی په حقله (دَمؤمنانوسره)

قَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوءَ

وائی به | هغه خلق | کوموته چه ورکړے شوے وو | علم | بیشکه | رسوائی | نن ورځ | او سختی

جګړے کولے۔ نو دَعلم خاوندان به ووائی چه نن (ورځ) رسوائی او بدبختی په هغے کافرانو

عَلَى الْكٰفِرِينَ ﴿٢٧﴾ الَّذِينَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمْ

په کافرانو دَه | په هغو خلقو چه | قبض کول به روحونه دَدوی | فرښتو | دوی ظلم کولو | په خپلو ځانونو

دَه ، چه فرښتو ترے نه په داسے حال کښے روحونه قبض کړی دی چه لګیا وو په ځان ئے ظلم کولو

فَأَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوٓءٍ ۚ بَلٰٓى إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌۢ

پس دوی به پیش کړی | صلح | چه مونږ خو به نهٔ کوله | څهٔ بدی | ولے نه | بیشکه الله | پوهه دے

نو بیا به هغوئی دَصلحے خبره رامخکښے کړی چه مونږ خو هیڅ بد نهٔ کول، ولے نه ! بیشکه الله تعالیٰ ته ستاسو

بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٨﴾ فَادْخُلُوٓا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِينَ فِيهَا ۖ

په هغه څهٔ | چه تاسو به کول | پس داخل شئ | په دروازو کښے | دَدوزخ همیشه به وُسیږئ | په هغے کښے

دَ ټولو عملونو خبر دے۔ نو اوس دَدوزخ دروازو نه ورننوځئ ، په دے کښے به همیشه پراته یئ

فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٢٩﴾ وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا

پس بد دے | ځائے | دَکبرژنو | او وُ ویلے شو | هغو خلقو ته | چه پرهیزګاره دی

دَمغرورو خلقو دَپاره څومره خرابه ټیکاؤنړه ده۔ او څوک چه متقیان دی دَهغوئی نه تپوس وُشی

مَاذَآ أَنزَلَ رَبُّكُمْ ۚ قَالُوا خَيْرًا ۗ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا

چه څهٔ | نازل کړی دی | ستاسو رب | نو دوی وائی | نیکے خیرے | هغو دَپاره | کوم چه نیکی وکړه

چه ستاسو رب څهٔ رانازل کړی دی ؟ نو جواب به ورکړی چه ډیر ښهٔ (کلام) ، کومو خلقو چه نیکی وکړه

فِي هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۚ وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ ۚ وَلَنِعْمَ

په دے دنیا کښے | نیکه بدله ده | او خامخا کور | دَآخرت | غوره دے | او ډیر ښهٔ دے

هغوی دَپاره به دے دُنیا کښے نیکه بدله ده او البته دَآخرت کور دَټولو نه بهتر دے او دَپرهیزګارو هغه

دَارُ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۰﴾ جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

کور | دَ پرهیزګارانو | باغونه دي | دَ همیشه | چه دوی به داخلیږي دے ته | بهیږي به | لاندې دَ دے نه

کور ډیر ښهٔ دے. هغه دَ همیشه اوسیدو باغونه دي په کوم کښے چه به دوی داخلیږي دَ دے لاندې نهرونه

الْاَنْهٰرُ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ ۚ كَذٰلِكَ يَجْزِي اللّٰهُ

نهرونه | دوی دَ پاره | به وي په دے کښے | څهٔ چه دوی غواړي | دغه شان | جزا ورکوي | الله

بهیږي هلته چه به دوی څهٔ غواړي هغه به ورته ملاویږي، پرهیزګارانو ته الله تعالیٰ هم دغه

الْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۱﴾ الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ طَيِّبِيْنَ ۙ يَقُوْلُوْنَ

پرهیزګارانو ته | هغه چه | قبض کوي روحونه دَ دوی | فرښتے | (په دے حال کښے چه) دوی پاکے وي | (دوی ته) وائي

شان بدله ورکوي، دا هغه خلق دي دَ کومو روحونه چه فرښتے (په دے حال کښے) قبضوي چه دوی پاک وي، فرښتے به

سَلٰمٌ عَلَيْكُمُ ۙ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۳۲﴾

سلام دے وي | په تاسو | داخل شئ | جنت ته | دَ هغو (عملونو) په بدله کښے | چه تاسو کول

ورته وائي چه په تاسو دے سلام وي، او دَ خپلو (نیکو) عملونو په بدله کښے جنت ته ورننوځئ.

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ يَاْتِيَ اَمْرُ رَبِّكَ

ایا دوی انتظار کوي | صرف دَ دے | چه راشي دوی ته | فرښتے | یا راشي | حکم ستا دَ رب

ایا دوی (کفار) صرف په دے انتظار کښے دي چه دوی ته فرښتے راشي یا ستا دَ رب حکم (عذاب یا قیامت) راشي

كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۗ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ

هم دغه شان | کړي وو | هغو خلقو | چه له دوی نه وړاندې وو | او نهٔ وو کړے ظلم په دوی | الله | لیکن

دغه شان هغو خلقو هم کړي وُو چه دَ دوی نه مخکښے تیر شوي دي، او الله تعالیٰ په دوی هیڅ ظلم نهٔ وو کړے

كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۳۳﴾ فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ

دوی ځخپله | په خپلو ځانونو | ظلم کولو | پس ورسیدلے دوی ته | بدے (نتیجے)

بلکه دوی ځخپله په خپلو ځانونو ظلم کولو. نو آخر دوی ته دَ خپلو عملونو سزا

مَا عَمِلُوْا وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۳۴﴾

دَ دوی دَ عملونو | او راتاو شو | په دوی | هغه (عذاب) | کوم پورے چه | به دوی توقے کولے

ورسیده او هغه عذاب ترے نه راچاپیره شو چه دوی به ورپورے توقے کولے.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا عَبَدْنَا

او ووئیل | هغو خلقو | کومو چه شرک وکړو | که چرے غوښتلے | الله | نو موږ به عبادت نهٔ وو کړے

او ووئیل هغو خلقو چه شرک ئے کړے وو، که چرے الله تعالیٰ غوښتلے نو نهٔ به موږ دَ الله نه

مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ نَّحْنُ وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُوْنِهٖ

سوا دَ (الله) نه | دَ څهٔ څیز | موږ | او نهٔ زموږ پلار نیکهٔ | او نهٔ به موږ حرام کړے وو | دَ ده دَ حکم نه بغیر

سوا دَ څهٔ څیز عبادت کړے وو او نهٔ زموږ پلار نیکهٔ. او نهٔ به موږ دَ هغهٔ دَ حکم نه بغیر څهٔ

مِنْ شَيْءٍ ؕ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ

څهٔ څيز | هم دغه شان | كړى وو | هغه خلقو چه | له دوى نه وړاندې وو | پس آيا

څيز حرام كړے وو، هم دغسے بهانے هغے خلقو هم كړے وے چه د دوئ نه مخوا تير شوى دى، نو د پيغمبر په

عَلَى الرُّسُلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿٣٥﴾ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ

د رسولانو په ذمه (څهٔ نور هم) شته | سوا | د تبليغ | ښكاره نه | او بيشكه مونږ ليږلے دے | په هر يو

ذمه خو بس دومره قدر دے كار دے چه صفا صفا (ويئا) ورته ورسوى، او مونږ په هر قوم كښے يو نه يو

اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ۚ

اُمت كښے | يو پيغمبر | چه عبادت كوئ | د الله | او ځان ساتئ | له بتانو نه

پيغمبر ضرور ليږلے دے (چه ورته او وايه چه اے خلقو!) د الله تعالىٰ عبادت كوئ او د بتانو (د عبادت) نه ځان ساتئ

فَمِنْهُمْ مَّنْ هَدَى اللّٰهُ وَمِنْهُمْ مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ

پس څينے له دوى نه | هغه څوک وو | چه ورته هدايت كړے دے | الله | او څينے له دوى نه | هغه څوک وو | چه ثابته شوے ده | په هغهٔ باندې

نو په دوى كښے څينے داسے دى چه الله تعالىٰ ورته هدايت وكړو او څينے داسے دى په كومو چه ګمراهي ثابته

الضَّلٰلَةُ ؕ فَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

ګمراهي | پس وګرځئ | په زمكه كښے | پس وګورئ چه | څنګه | شو | انجام

شوه، نو تاسو لږ په ملک كښے وګرځئ او وګورئ چه د دروغژن ګڼړونكو خلقو انجام

الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٣٦﴾ اِنْ تَحْرِصْ عَلٰى هُدٰىهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ

د دروغ ګڼړونكو | كهٔ چرے | ته خواهش وكړے | په سمه لار د راوستو د دوى | نو بيشكه | الله

څهٔ شو ؟ كهٔ ستا دا تمنا وى چه دوئ به په سمه لار روان شى نو الله تعالىٰ هغه څوک

لَا يَهْدِيْ مَنْ يُّضِلُّ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٣٧﴾

لاره نهٔ ښائى | هغه چا ته كوم چه | هغه ګمراه كړى | او نشته دے د دوى | څوک مدد ګار

په سمه لاره نهٔ بوځى چه بو ځل ئے (د عناد په وجه) ګمراه كړے وى او نهٔ د داسے خلقو څوک مدد ګار شته.

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ۙ لَا يَبْعَثُ اللّٰهُ مَنْ

او دوى قسمونه خورى | په الله | سخت | قسمونه | چه نهٔ به راپاسوى | الله | څوک چه

او دا خلق د الله تعالىٰ سخت قسمونه خورى، چه الله تعالىٰ به هغه دوباره نهٔ راژوندے كوى څوک

يَّمُوْتُ ؕ بَلٰى وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٨﴾

مړ شى | ولے نه ! | وعده ده | د هغهٔ په ذمه | رښتينې | ليكن | اكثر خلق | نهٔ پوهيږى

چه مړ شى۔ ولے نه ! دا وعده خو د الله تعالىٰ په ذمه لازمه ده ليكن اكثر خلق نه پوهيږى

لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِيْ يَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ

چه واضحه كړى | په دوى | هغه خبره | چه دوى اختلاف كولو په هغے كښے | او چه پوهه شى | هغه خلق

(دوباره به ئے ځكه ژوندى كوى) چه په دوى د هغه څيز حقيقت واضحه كړى په كوم كښے چه دوى اختلاف كولو او چه د كافرانو

كَفَرُوْٓا اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰذِبِيْنَ ۝۳۹ اِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ

چه کافران دی | چه بیشکه دوی | کافران وو . | بیشکه | زموږ وینا | یو څیز ته

یقین راشی چه هم دوی دروغژن ؤو . موږ چه د یو څیز د پیدا کولو اراده

اِذَآ اَرَدْنٰهُ اَنْ نَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ۝۴۰ وَالَّذِيْنَ

هر کله چه موږ د هغې اراده وکړو | نو موږ وایو | هغې ته | شه | نو هغه شی | او کوم خلق چه

وکړو ، نو بس دومره ورته وایو چه "اوشه" نو هغه اوشی . او چا چه د

هَاجَرُوْا فِي اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ

هجرت وکړو | الله د پاره | پس له دے نه | چه په دوی ظلم وشو | خامخا به موږ دوی له ځائے ورکړو

الله تعالیٰ د پاره هجرت کړے دے ، پس له دے نه چه ظلمونه پرے شوی وو ، نو موږ به ورله په دنیا

فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۭ وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا

په دنیا کښے | ښه | او اجر | د آخرت | ډیر لوئے دے | کاش! هغه خلق

کښے هم ډیره ښه ټیکاؤنړه ورکړه ، او د آخرت اجر خو ډیر لوئے دے . کاش ! هغه (هجرت نه

يَعْلَمُوْنَ ۝۴۱ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰي رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۝۴۲

پوهیدے | کومو خلقو چه | صبر وکړو | او په خپل رب باندے | ئے توکل وکړو .

پاتے کیدونکی) پوهیدے . دا هغه خلق دی کومو چه د صبر نه کار واخستو او په خپل رب باندے ئے توکل وکړو

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ فَسْـَٔلُوْٓا

او نۀ دی لیږلی موږ (پیغمبران) | له تا نه وړاندے | مګر سړی | وحی به رالیږله موږ | هغوی طرف ته | پس تپوس وکړئ

او (اے پیغمبره !) موږ له تا نه وړاندے هم (بل څوک نه بلکه) سړی پیغمبران لیږلی دی چه وحی به مو ورته لیږله نو د

اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝۴۳ بِالْبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ ۭ وَاَنْزَلْنَآ

د عالمانو نه | که چرے تاسو | نۀ پوهیږئ | په دلیلونو | او کتابونو سره | او نازل کړو موږ

عالمانو نه تپوس وکړئ که تاسو پخپله نۀ پوهیږئ (هغوئی مو د) ښکاره دلیلونو او کتابونو سره (لیږلی وو) او موږ

اِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ

ستا طرف ته | (دا) قرآن | چه ته ئے بیان کړے | خلقو ته | هغه څه چه نازل کړے شو | د دوی طرف ته | او چه دوی

ستا طرف ته کتاب نازل کړے دے چه خلقو د پاره (هغه کلام) واضحه کړے کوم چه د دوی طرف ته نازل کړے شوے دے او چه

يَتَفَكَّرُوْنَ ۝۴۴ اَفَاَمِنَ الَّذِيْنَ مَكَرُوا السَّيِّاٰتِ اَنْ يَّخْسِفَ

غور او فکر وکړی | آیا بے ویرے شول | هغه کومو چه | تدبیرونه وکړل | بد | چه ننباسی

دوی د فکر نه کار واخلی . آیا هغه خلق کوم چه بد بد تدبیرونه اختیار وی بے ویرے شوی دی چه الله تعالیٰ

اللّٰهُ بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ

الله | دوی | په زمکه کښے | یا راشی په دوی | عذاب | کوم ځائے نه چه

دوی په زمکه کښے ننباسی ، یا په دوی باندے عذاب راشی چه د دوی په وهم

لَا يَشْعُرُونَ ۝٤٥ أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ ۝٤٦

دوی ته خبرهم نه وی | یا هغه ونیسی دوی | په تګ راتګ کښې د دوی | پس نه دی دوی عاجزه کوونکی

او ګمان کښې هم نه وی. یا دوئ په تګ راتګ کښې (ناګهانه) راونیسی، دوئ په هیڅ شان هم (الله) عاجزه کولے

أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ تَخَوُّفٍ فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ۝٤٧

یا هغه ونیسی دوی | د ویرے په حالت کښې | پس بیشکه ستا سو رب | ډیر مهربان | رحم کوونکے دے.

نه شی، یا په داسے حالت کښې دوی ونیسی چه دوی ویرېدلی وی، بیشکه ستاسو رب ډیر مهربان (او) رحم کوونکے دے

أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ يَتَفَيَّأُ

آیا نه دی | کتلی دوی | طرف د هغه څه ته | چه پیدا کړی دی | الله | له څیزونو نه | چه ګرځی

آیا دوی چرے داسے څیزونه نه دی لیدلی کوم چه الله تعالی پیدا کړی دی چه د هغے سوری

ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِّلَّهِ وَهُمْ

سوری د هغے | له ښی طرف نه | او له ګس طرف نه | سجده کوونکی | او دوی

ښی او ګس طرف ته ګرځی ، الله تعالی ته سجدے کوی او دوی

دَاخِرُونَ ۝٤٨ وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

عاجزی کوونکی دی | او الله ته | سجده کوی | څه چه په آسمانونو کښې دی | او څه چه په زمکه کښې دی

فرمانبرداره دی. او (ټول) د الله تعالی تابع دی څومره ګرځیدونکی څیزونه چه په آسمانونو کښې دی او

مِن دَابَّةٍ وَالْمَلَائِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۝٤٩ يَخَافُونَ رَبَّهُم

له ځناورو نه | او فرښتے (هم) | او دوی | غرور نه کوی. | دوی ویریږی | د خپل رب نه

څومره چه په زمکه کښې دی او فرښتے (هم) او دوی خپل ځان لوئے نه ګڼړی، د خپل هغه رب نه ویریږی

مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ۩ ۝٥٠ وَقَالَ اللَّهُ

چه د دوی د پاسه دے | او دوی کوی | هغه څه چه | دوی ته ئے حکم کولے شی | او وئیل | الله

چه د دوی د پاسه (غالب) دے او هم هغه کار کوی د کوم چه دوی ته حکم کولے شی. او الله تعالی فرمائی

لَا تَتَّخِذُوا إِلَٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ۚ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ

مه نیسئ | معبودان | دوه | بیشکه | هغه خو | معبود دے | یو

چه تاسو دوه معبودان مه نیسئ، (یاد ساتئ) چه بیشکه معبود صرف یو دے.

فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ۝٥١ وَلَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

پس هم له مانه | ویریږئ | او هم د هغه دی | څه چه | په آسمانونو کښې | او زمکه کښې دی

پس هم له مانه ویره کوئ. او څه چه په آسمانونو کښې دی او څه چه په زمکه کښې دی ټول هم د هغه دی

وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا ۚ أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَتَّقُونَ ۝٥٢ وَمَا

او هم د هغه | بندګی | واجب ده | پس آیا غیر | د الله نه | تاسو ویریږئ | او هغه څه چه

او هم د هغه عبادت لازم دے ، آیا تاسو د الله تعالی نه سوا د نورو نه ویریږئ او تاسو سره

السجدة ٣ ركوع ٦

بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ثُمَّ اِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَاِلَيْهِ

تاسو سره دی | له نعمت نه | پس د الله د طرف نه دی | بیا هر کله چه | تاسو ته رسیږی | تکلیف | نو هغه ته

چه څهٔ نعمت دے نو هغه د الله تعالیٰ د طرف نه دے بیا هر کله چه تاسو ته څه تکلیف رسیږی نو تاسو هم هغه

تَجْـَٔرُوْنَ ﴿۵۳﴾ ثُمَّ اِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنْكُمْ اِذَا فَرِيْقٌ

فریاد کوئ | بیا هر کله چه | لرے کړی | تکلیف | له تاسو نه | نو هم هغه وخت | یوه ډله

ته فریاد کوئ، بیا هر کله چه له تاسو تکلیف لرے کړی نو له تاسو نه څهٔ خلق فوراً د خپل رب

مِّنْكُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۵۴﴾ لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ

له تاسو نه | خپل رب سره | شریک مقرروی | چه دوی ناشکری وکړی | د هغه څهٔ | چه ورکړی دی مونږ دوی ته

سره شریک مقرروی ـ د پاره د دے چه څهٔ مونږ دوی له ورکړی دی د هغے ناشکری وکړی

فَتَمَتَّعُوْا فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۵۵﴾ وَيَجْعَلُوْنَ لِمَا لَا يَعْلَمُوْنَ

پس تاسو فائده واخلئ | پس ډیر زر | به تاسو ته معلومه شی | او مقرروی دوی | د پاره د هغو چه | دوی پرے نهٔ پوهیږی

نو (څو ورځے) مزے وکړئ زر به تاسو ته حال معلوم شی۔ او دوئ هغه چاله چه دوئ ئے پخپله نهٔ پیژنی، زمونږ

نَصِيْبًا مِّمَّا رَزَقْنٰهُمْ ؕ تَاللّٰهِ لَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَفْتَرُوْنَ ﴿۵۶﴾

برخه | له هغه څهٔ نه | چه مونږ ورکړل دوی ته | په الله قسم | خامخا به تپوس کیږی له تاسو نه | د هغه څهٔ چه تاسو ئے له ځان نه تړل

په ورکړی رزق کښے برخے مقرروی، قسم په الله دے چه تاسو نه به خامخا د داسے بهتانونو په حقله پوښتنه کیږی

وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ الْبَنٰتِ سُبْحٰنَهٗ ۙ وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿۵۷﴾

او دوی مقرروی | الله د پاره | لونړه | پاک دے هغه | او ځان د پاره | څهٔ چه دوی غواړی (یعنی ځامن)

او دوی الله تعالیٰ له لونړه مقررے کړی دی (حالانکه) هغه پاک دے او ځان له هغه څهٔ غواړی کوم چه د دوئ خوښ

وَاِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ بِالْاُنْثٰى ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا

او هر کله چه زیرے ورکړے شی | یو له په دوی کښے | د جینئ | نو شی | مخ د دهٔ | تور

وی (یعنی ځامن) حال دا دے چه هر کله په دوئ کښے چا ته د لور زیرے واوروے شی نو د هغهٔ مخ تک تور شی

وَّهُوَ كَظِيْمٌ ﴿۵۸﴾ يَتَوَارٰى مِنَ الْقَوْمِ مِنْ سُوْٓءِ مَا بُشِّرَ بِهٖ

او دے له غم نه ډک وی | پټیږی | له خلقو نه | په وجه د شرم | د هغه څهٔ | چه دهٔ ته زیرے ورکړے شو

او هغه غمژن شی، د کوم څیز چه دهٔ ته زیرے ورکړے شو د دے د شرم په وجه هغه د قوم نه پټ مخ کرځی

اَيُمْسِكُهٗ عَلٰى هُوْنٍ اَمْ يَدُسُّهٗ فِى التُّرَابِ ؕ اَلَا سَآءَ

چه وساتی دا | په ذلت سره | یا ښخه کړی دا | په خاوره کښے | یاد ساته بد دے

(او سوچ کوی) چه ذلت ؤزغمی او (لور ژوندئ) پریږدی یائے په خاورو کښے ښخه کړی، یاد ساته چه د دوئ

مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۵۹﴾ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ مَثَلُ

هغه څهٔ | چه دوی ئے فیصله کوی | کوم خلق چه | ایمان نهٔ لری | په آخرت | د دوی مثال

دا فیصله ډیره خرابه ده ، کوم خلق چه په آخرت ایمان نهٔ راوړی ـــ د هغوئ مثال ډیر

السَّوْءِ ۚ وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى ۗ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٦٠﴾ ع

بد دے | اوالله دَپاره دے | مثال | دَ ټولو نه اوچت | او هغه ډیر غالب | خاوند دَ حکمت دے۔
خراب دے او دَ الله تعالیٰ شان ډیر اُوچت دے او هغه زبردست دَ حکمت خاوند دے۔

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِمْ مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِنْ دَآبَّةٍ

او که چرے | ونیسی | الله | خلق | په وجه دَ ظلم دَدوی | نو پرے به نږدی | په دے (زمکه) | څه خوزیدونکے څیز
او که چرے الله تعالیٰ خلق دَ دوی دَ ظلم په وجه نیولے نو هغهٔ به دَ زمکے په مخ هیڅ سادار نهٔ وو پریښے

وَّلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ

لیکن | هغه مهلت ورکوی دوی ته | تر وخت | مقرر پورے | بیا چه کله راشی | مقرر وخت دَ دوی
لیکن هغه دوی ته یو مقرر وخت پورے مهلت ورکوی ، بیا هر کله چه دَ دوی وخت راشی

لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿٦١﴾ وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ

نو وروستو به پاتے نهٔ شی دوی | یو ساعت | او نهٔ به وړاندِ لاړ شی | او دوی مقرر روی | الله دَ پاره
نو نهٔ به یو ساعت وروستو کیدے شی او نهٔ به وړاندِ کیدے شی، او (دا) دوی الله له هغه څهٔ

مَا يَكْرَهُوْنَ وَتَصِفُ اَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ اَنَّ

هغه څهٔ چه | دوی ئے نهٔ خوښوی | او بیانوی | ژبے دَ دوی | دروغ خبره | چه
مقرروی چه پخپله خپل ځان له ئے نهٔ خوښوی، او دَ دوی ژبے دروغ وائی ، چه

لَهُمُ الْحُسْنٰى ۗ لَا جَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَاَنَّهُمْ

دوی دَ پاره | ښهٔ حال دے | لازمی خبره دا | چه | دوی دَ پاره | دوزخ دے | او بیشکه دوی
دَ دوی په برخه کښے تش ښهٔ والے دے، دوی له خوبس یو خبر دے چه هغه دَ دوزخ اور دے او بیشکه دوی

مُّفْرَطُوْنَ ﴿٦٢﴾ تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ

به وړاندِ لیږلے شی (دوزخ ته) | دَ الله قسم | بیشکه | مونږ لیږلی دی (پیغمبران) | دَ اُمتونو طرف ته | له تا نه وړاندِ
به (دوزخ ته) وړاندِ لیږلے شی۔ دَ الله قسم مونږ له تا نه وړاندِ هم امتونو طرف ته پیغمبران لیږلی دی

فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ

بیا ښائسته کړل | دوی دَ پاره | شیطان | عملونه دَ دوی | پس هغه | ملګرے دے دَ دوی | نن ورځ
بیا شیطان دَ دوی (خراب) عملونه دوی ته ښائسته ښکاره کړل، پس نن هغه دَ دوی دوست دے

وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٦٣﴾ وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ

او دوی دَ پاره | عذاب دے | دردناک | او نهٔ دے نازل کړے مونږ | په تا باندِ | کتاب
او دوی (ټولو) دَ پاره دردناک عذاب دے۔ او مونږ په تا باندِ داکتاب حُکه نازل کړے دے

اِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِى اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةً

مګر | دَ پاره دَدے چه ته بیان کړے | دوی ته | هغه خبره | چه دوی به اختلاف کولو په هغے کښے | او هدایت | او رحمت
چه ته دَ دوی اختلافی خبرے دوی ته په ښهٔ شان واضحه کړے، او (داکتاب) دَ مؤمنانو دَ پاره

لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٦٤﴾ وَاللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا

هغه خلقوله | چه ايمان راوړي | او الله | رادوروي | له اسمان نه | اوبه پس ژوندئ ئےکړله

هدايت او رحمت دے ۔ او الله تعالیٰ د پره نه اوبهٔ راووروي نو د هغے په ذريعه ئے

بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ

په دےسره | زمکه | پس له مرګ (شاړيدو) د هغے نه | بيشکه | په دے کښے | نخښه ده | هغه خلقو دپاره

زمکه د اوچيدو نه پس بيا ژوندئ کړه ۔ په دے کښے هغه خلقو له غټه نخښه پرته ده چه خبرے

يَّسْمَعُوْنَ ﴿٦٥﴾ وَاِنَّ لَكُمْ فِي الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۭ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا

چه اوري (په غور سره) | او بيشکه | تاسو دپاره | په څاروو کښے | عبرت دے | موبږ څښوو تاسو ته | له هغه څه نه

نه غوږ بږدي ۔ او تاسو د پاره په څاروو کښے هم يو لوئے سبق (پروت) دے ، موبږ د هغوئ د خيټو

فِيْ بُطُوْنِهٖ مِنْۢ بَيْنِ فَرْثٍ وَّدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَاۗىِٕغًا

چه په خيټو د دوي کښے دي | له مينځ | د سوټے | او وينے نه | پئ | خالص | مزيدار

د سوټو او د وينو د مينځ نه تاسو له صفا او مزيدار پئ څښلو له

لِّلشّٰرِبِيْنَ ﴿٦٦﴾ وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَالْاَعْنَابِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ

څښونکو د پاره | او له ميوو نه | د قجورو | او د انګورو هم | چه تاسو جوړوئ | له هغے نه

درکوو ۔ او د قجورو او د انګورو له ميوو نه تاسو د نشے څيزونه

سَكَرًا وَّرِزْقًا حَسَنًا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿٦٧﴾

نشه | او روزي | ښه (هم) | بيشکه | په دے کښے | نخښه ده | هغه خلقو د پاره | چه عقل لري

جوړوئ او ښهٔ رزق هم (حاصلوئ) ، بيشکه په دے کښے نخښه ده هغو خلقو د پاره چه عقل لري

وَاَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِيْ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا

او الهام وکړو | ستا رب | د شاتو مچئ ته | چه ته جوړه وه | له غرونو نه | کورونه

او ستا رب د شاتو د مچئ په زړهٔ کښے دا خبره واچوله چه ته په غرونو ، کورونو ، او نو او په

وَّمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُوْنَ ﴿٦٨﴾ ثُمَّ كُلِيْ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ

او له اونو نه | او له هغه څه نه | چه دوی ئے چتونه جوړوی | بيا خوره | له هر قسم ميوونه

هغو اُوچتو او چتو عمارتونو کښے چه خلق ئے جوړوی کور جوړکړه ۔ بيا هر قسم ميوے وُخوره

فَاسْلُكِيْ سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا ۭ يَخْرُجُ مِنْۢ بُطُوْنِهَا شَرَابٌ

بيا روانه شه | په لارو | د خپل رب | چه آسانے دي | راوځئ | له خيټو د هغے نه | د څښلو څيز (شات)

بيا د خپل رب په آسانو لارو باندے ځه ۔ د دوي د خيټو نه د څښلو يو څيز (شات) وځي

مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَاۗءٌ لِّلنَّاسِ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

مختلف دي | رنګونه د هغے | په هغے کښے | شفاء ده | خلقو د پاره | بيشکه په دے کښے

چه رنګونه ئے مختلف وي په هغے کښے خلقو د پاره شفا ده ، بيشکه په دے کښے هغو خلقو

لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿٦٩﴾ وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفّٰىكُمْ

نخښه ده | هغو خلقو دَ پاره | چه فکر کوی | او الله | پیدا کړی تاسو | بیا | به مړهٔ کړی تاسو

له نخښه پرته ده چه دَ فکرنه کار اخلی ۔ او الله تاسو پیدا کړی بیا به هم هغه تاسو له مرګ درکوی

وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ

او له تاسو نه ځنې هغه څوک دی | چه ورګرځولے شی | تر ډیر دَ خوارئ عمر نه | چه | نهٔ پوهیږی

او له تاسو نه ځنې ناکاره عمر (سخت بوډاوالی) ته رسولے شی چه دَ پوهے نه پس بیا (سر دوباره)

بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ﴿٧٠﴾ ع وَاللّٰهُ

پس دَ پوهیدو نه | په څهٔ څیز | بیشکه | الله | پوهه | دَ قدرتونو خاوند دے | او الله

په څهٔ پوهه نهٔ شی ، بیشکه الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه (او) دَ قدرتونو خاوند دے ۔ او الله

فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ فِي الرِّزْقِ ۚ فَمَا الَّذِيْنَ

فضیلت ورکړے دے | له تاسو نه ځنو ته | په ځنو باندِ | په روزئ کښے | پس نهٔ دی هغه خلق

تاسو له په یو بل باندِ په روزئ کښے فضیلت درکړے دے ، نو چا له چه دا فضیلت

فُضِّلُوْا بِرَآدِّيْ رِزْقِهِمْ عَلٰى مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَهُمْ

کوم ته چه فضیلت ورکړے شوے دے | واپس کوونکی | دَ خپلے روزئ | هغه چا ته | چه مریان دی دَ دوی | چه دوی

ورکړے شوے دے هغوی دا سے نهٔ کوی چه دَ خپلے برخے مال خپلو مریانو له ورکړی ، چه ټول په

فِيْهِ سَوَآءٌ ؕ اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ﴿٧١﴾ وَاللّٰهُ جَعَلَ

په هغے کښے | برابر (شی) | پس آیا دَ نعمت | دَ الله | دوی انکار کوی | او الله | پیدا کړے

دے هغه کښے برابر شی ، نو آیا دوئی دَ الله تعالیٰ دَ نعمت نه انکار کوی ؟ او الله تعالیٰ تاسو دَ پاره

لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ

تاسو دَ پاره | هم له تاسو نه | ښځے | او پیدا ئے کړل | تاسو دَ پاره | له ښځو ستا سو نه

هم له تاسو نه ستاسو جوړے پیدا کړے ، او ستاسو له ښځو نه ئے (ستاسو) ځامن او

بَنِيْنَ وَحَفَدَةً وَّرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ؕ اَفَبِالْبَاطِلِ

ځامن | او نمسی | او هغهٔ روزی درکړه تاسو ته | له پاکیزه څیزونو نه | نو آیا په باطل باندِ

نمسی پیدا کړل ، او تاسو له ئے دَ پاکیزه څیزونو نه روزی درکړه ، نو آیا دوی

يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ ﴿٧٢﴾ وَيَعْبُدُوْنَ

دوی ایمان راوړی | او دَ نعمت | دَ الله | دوی انکار کوی | او دوی عبادت کوی

باطل څیزونه منی ، او دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو نه انکار کوی ، او دوی دَ الله تعالیٰ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ

بغیر | دَ الله نه | دَ هغه څهٔ | چه مالک نهٔ وی | دوی دَ پاره | دَ رزق | له آسمانونو

نه بغیر دَ هغه څیزونو عبادت کوی ، چه دَ آسمانونو او زمکے نه دوی ته دَ روزئ ورکولو هیڅ هم

وَالْاَرْضِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٧٣﴾ فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ

اوله زمکے نه | دَ هیڅ هم | او نهٔ دوی دا کولے شي | پس مهٔ | بیانوئ | الله دَپاره

اختیار نهٔ لري او نهٔ دَ هغې معبودانو دَ وس خبره دَه ، نو تاسو الله تعالیٰ ته مثالونه مهٔ

الْاَمْثَالَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٧٤﴾ ضَرَبَ

مثالونه | بیشکه | الله | پوهیږي | او تاسو | نهٔ پوهیږئ | بیان کړو

اُوروئ ، بیشکه الله تعالیٰ (په هره خبره) پوهیږي او تاسو نهٔ پوهیږئ ـ الله تعالیٰ یو مثال

اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا لَّا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ

الله | یو مثال | چه یو غلام دے | چه دَ بل په اختیار کښې دے | هغه قدرت نهٔ لري | په هیڅ څیز

بیانوي چه یو غلام دے چه دَ بل په اختیار کښې دے (او) په هیڅ څیز قدرت نهٔ لري

وَّمَنْ رَّزَقْنٰهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ

او (بل) هغه څوک | کوم له چه مونږ روزي ورکړے ده | له خپل طرف نه | روزي | ښه | پس هغه | خرڅ کوي

او یو هغه څوک دے کوم له چه مونږ دَ خپل طرف نه ښهٔ رزق ورکړے دے ، پس هغه له دے نه په

مِنْهُ سِرًّا وَّجَهْرًا ؕ هَلْ يَسْتَوٗنَ ؕ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

له هغې نه | په پټه | او په ښکاره | آیا دوی برابر دي ؟ | ټول تعریفونه | الله دَپاره دي

پټه او په ښکاره خرڅ کوي ، آیا دا دواړه برابر دي ؟ (هیڅکله نهٔ) ټول تعریفونه الله دَپاره دي

بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٥﴾ وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ

بلکه | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږي | او بیان کړو | الله | (بل) مثال | دَ دوؤ سړو

لیکن په دوی کښې اکثر نهٔ پوهیږي ـ او الله تعالیٰ دَ دوؤ سړو یو بل مثال بیانوي

اَحَدُهُمَآ اَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ وَّهُوَ كَلٌّ

یو په دے دواړو کښې | ګونګا دے | قدرت نهٔ لري | په هیڅ څیز | او هغه | پیټے دے

چه په دوی کښې یو ګونګا دے چه په هیڅ کار قادر نهٔ دے او دَ خپل مالک دَپاره پیټے

عَلٰى مَوْلٰىهُ ۙ اَيْنَمَا يُوَجِّهْهُّ لَا يَاْتِ بِخَيْرٍ ؕ هَلْ يَسْتَوِيْ

په خپل مالک باندې | کوم ځائے ته | چه دے هغه لیږي | نهٔ راوړي | څهٔ خیر | آیا | برابر دے

جوړ شوے دے ، هغه چه کوم خوا هم دے لیږي نو ښیګړه لے دَ لاسه نهٔ کیږي آیا برابر یں ے شي

هُوَ ۙ وَمَنْ يَّاْمُرُ بِالْعَدْلِ ۙ وَهُوَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٧٦﴾

هغه | او هغه کس | چه حکم کوي | دَ انصاف | او هغه | په لاره دے | سمه

دا او هغه څوک چه دَ انصاف حکم ورکوي او خپله په نیغه لاره باندې دے

ع ١٠ / ١٦

وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَآ اَمْرُ السَّاعَةِ

او الله دَپاره دي | پټے خبرے | دَ آسمانونو | او زمکے | او نهٔ دَه | معامله | دَ قیامت

او دَ آسمانونو او دَ زمکے دَ پټو خبرو علم هم الله تعالیٰ ته دے ، او دَ قیامت راتلل بالکل داسے دي

إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ ۚ إِنَّ اللَّهَ

مګر | په شان دَ رپ | دَ سترګې | يا هغه | (دَ دِې نه هم) زيات نزدې دې | بيشکه الله

لکه دَ سترګې رپيدل يا دَ دې نه هم زيات نزدې ـ بيشکه الله تعالیٰ

عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٧٧﴾ وَاللَّهُ أَخْرَجَكُم مِّن بُطُونِ

په هر څيز بانِدِ | قادر دې | او الله | راوويستلئ تاسو | له خيټو نه

په هر څيز بانِدِ قدرت لري ، او الله تعالیٰ تاسو ستاسو دَ میندو دَ خيټو نه

أُمَّهَاتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْئًا وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ

دَ ميندو ستاسو | چه تاسو نهٔ پوهيدئ | په هيڅ څيز | او جوړې کړل | تاسو دَ پاره | غوږونه

راوويستلئ په داسې حال کښې چه په هيڅ نه پوهيدئ ، او الله تعالیٰ ستاسو غوږونه ، سترګې

وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ ۙ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٧٨﴾ أَلَمْ يَرَوْا

او سترګې | او زړونه | دَ پاره دَ دې چه تاسو | شکر ادا کړئ | آيا نهٔ دي کتلي دوی

او زړونه جوړ کړل چه تاسو شکر ادا کړئ ـ آيا دې خلقو

إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَاتٍ فِي جَوِّ السَّمَاءِ مَا يُمْسِكُهُنَّ

مارغانو ته | چه دَ حکم پابند دي | په فضا کښې | دَ آسمان | نهٔ راټينګوي دوی څوک

مارغان نهٔ دي ليدلي چه دَ آسمان په فضا کښې دَ حکم پابند دي ، دوی صرف الله تعالیٰ

إِلَّا اللَّهُ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٧٩﴾

مګر صرف | الله | بيشکه | په دِې کښې | نخښې دي | هغو خلقو دَ پاره | چه ايمان لري

راټينګ کړي دي ـ بيشکه په دِې کښې دَ ايمان راوړونکو خلقو دَ پاره نخښې دي ـ

وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّن بُيُوتِكُمْ سَكَنًا وَجَعَلَ لَكُم

او الله | جوړ کړي دي | تاسو دَ پاره | کورونه ستاسو | دَ اوسيدو ځلئې | او جوړ کړې ئې دي | تاسو دَ پاره

او الله تعالیٰ تاسو دَ پاره ستاسو کورونه دَ سکون ذريعه وګرځول او تاسو له ئې دَ څارويو دَ

مِّن جُلُودِ الْأَنْعَامِ بُيُوتًا تَسْتَخِفُّونَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ

له څرمنو نه | دَ څارويو | کورونه (خيمې) | چه تاسو سپک مومئ هغه | په ورځ دَ سفر خپل

څرمنو نه داسې کورونه جوړ کړل چه هغه دَ سفر په ورځ او دَ قيام په وخت کښې (په دواړو

وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ ۙ وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَا

او په ورځ دَ ډيره کيدو ستاسو | او له وړو دَ هغې نه | او له پشمو نو دَ هغې نه | او له ويښتو دَ هغې نه

موقعو) تاسو سپک بيا مومئ او دَ هغوئ دَ وړئ نه او دَ پشم نه او دَ ويښتو نه ستاسو دَ کور سامانونه او

أَثَاثًا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴿٨٠﴾ وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّمَّا خَلَقَ

سامانونه (دَ کور) | او فائده ده | يو مودې پورې | او الله | جوړ کړل | تاسو دَ پاره | له هغو (څيزونو) نه | چه هغه پيدا کړل

دَ فائدې څيزونه جوړ کړل چه تر يو وخته پورې (ترې نه فائده واخلئ) او الله تعالیٰ تاسو دَ پاره دَ خپلو پيدا کړو څيزونو

ظِلٰلًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْجِبَالِ اَكْنَانًا وَّجَعَلَ لَكُمْ

سوری | او هغه جوړ کړل | تاسو د پاره | د غرونو نه | غارونه | او هغه جوړ کړی دی | تاسو د پاره

سوری جوړ کړل او تاسو له ئے په غرونو کښے د پناه اخستلو ځایونه جوړ کړل او تاسو لئے داسے جامے جوړے

سَرَابِيْلَ تَقِيْكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيْلَ تَقِيْكُمْ بَاْسَكُمْ ط

جامے | چه هغه وساتی تاسو | له ګرمئ نه | او جامے (زغرے) | چه وساتی تاسو | له جنګ نه

کړے چه د ګرمئ نه مو بچ کوی ، او څه داسے جامے چه (د بوبل سره) په جنګونو کښے ستاسو حفاظت

كَذٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُوْنَ ۝۸۱

دغه شان | هغه پوره کوی | خپل نعمت | په تاسو بانډ | د پاره د دے چه تاسو | حکم ومنئ

کوی ، الله تعالیٰ د غسے خپل نعمتونه په تاسو پوره کوی ، د پاره د دے چه تاسو فرمان بردار وسیږئ ـ

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝۸۲ يَعْرِفُوْنَ نِعْمَتَ

بیا که چرے | دوی مخ واړوی | پس بیشکه | په تا بانډ | رسول دی | ښکاره | دوی پیژنی | نعمت

نو که (او س هم) دوئ مخ ګرځوی نو ستا په ذمه خو (نور څه نشته نش) څرګند خبر رسول دی ـ دوئ د الله نعمتونه

اللّٰهِ ثُمَّ يُنْكِرُوْنَهَا وَاَكْثَرُهُمُ الْكٰفِرُوْنَ ۝۸۳ وَيَوْمَ نَبْعَثُ

د الله | بیا (هم) | دوی انکار کوی له هغے نه | او اکثر په دوی کښے | ناشکره دی | او په کومه ورځ چه | مونږ راپاڅوو

پیژنی او بیا (سره د پوهے) ترے نه انکار کوی او په دے کښے اکثر خلق ناشکره دی او په کومه ورځ چه به مونږ

مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا

د هر یو | امت نه | یو ګواه | بیا به | اجازت نهٔ شی ورکولے | هغو خلقو ته | چه کافران دی

د هر یو امت نه یو ګواه راپاڅوو ، بیا به کافرانو ته (د حجت پیش کولو) اجازت ورکولے نهٔ شی ، او نهٔ به

وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ۝۸۴ وَاِذَا رَاَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ

و نهٔ به له دوی نه | عذرونه قبلولے شی | او هر کله چه | ووینی | هغه خلق | کوم چه ظلم وکړو | عذاب

د دوی څهٔ عذر قبلولے شی ـ او هر کله چه هغه خلق کوم چه ظلم کړے وو عذاب ووینی

فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ۝۸۵ وَاِذَا رَاَ الَّذِيْنَ

نو کمولے به نهٔ شی | له دوی نه | او نهٔ به | دوی ته | مهلت ورکولے شی | او هر کله چه | ووینی | هغه خلق

بیا به نهٔ د دوی نه (عذاب) کمولے شی او نهٔ به دوی ته مهلت ورکولے شی ـ او هر کله چه مشرکان خپل

اَشْرَكُوْا شُرَكَآءَهُمْ قَالُوْا رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ شُرَكَآؤُنَا الَّذِيْنَ

چه مشرکان دی | خپل شریکان | نو وٴبه وائی | اے ربه زمونږه ! | هم دادی | زمونږ شریکان | کوم چه به

شریکان (معبودان) ووینی ، نو وبه وائی اے زمونږه ربه ! دا زمونږ هغه معبودان دی کوم چه به

كُنَّا نَدْعُوْا مِنْ دُوْنِكَ ۚ فَاَلْقَوْا اِلَيْهِمُ الْقَوْلَ اِنَّكُمْ

مونږ بللل | بے له تا نه | بیا دوی به واپس کړی | د دوی طرف ته | دا خبره | چه بیشکه تاسو

مونږ له تا نه سوا بلل ، بیا به هغوی دوی ته دا جواب ورکوی چه بیشکه تاسو

يَفْتَرُوْنَ ۞ وَاَلْقَوْا اِلَى اللّٰهِ يَوْمَىِٕذِنِ السَّلَمَ وَضَلَّ

دروغژن یئ | او واچوی به کړی دوی | الله طرف ته | په دغه ورځ | فرمانبرداری (عاجزی) | او ورک به شی (هیر به شی)

دروغژن یئ - او (مشرکان به) په دغه ورځ الله سره دَ صلحې بناوتړی ، او خپل ټول بهتانونه به

عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۞ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا

له دوی نه | هغه څه چه | دوی به له ځانه تړل | کوم خلق چه | کفر وکړو | او منع ئے کړل (خلق)

ترے نه هیر شی - چا چه دَ کفر لاره غوره کړے وه او نور خلق ئے دَ

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ زِدْنٰهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا

دَ الله دَ لارے نه | مونږ به زیات ورکړو دوی ته | عذاب | دَ پاسه | عذاب | ولے چه دوی به

الله تعالیٰ دَ لارے نه منع کول ، هغوئ له به مونږ دَ بوے دَ پاسه بله سزا زیاته کړو ، ځکه چه هغوئ

يُفْسِدُوْنَ ۞ وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا

فساد کولو | او په کومه ورځ چه | مونږ به راپاڅوو | دَ هر یو اُمت نه | یو ګواه

به (په دنیا کښے) فساد ونه کول او هغه ورځ (هم دَ یاد جوګه ده) چه مونږ به دَ هر یو اُمت نه یو یو ګواه هم

عَلَيْهِمْ مِّنْ اَنْفُسِهِمْ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيْدًا عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ

په دوی | هم له دوی نه | او مونږ به راولو | تا | ګواه | په دے کافرانو

دَ هغوئ دَ مینځ نه راوچت کړو ، او تا به دَ دے خلقو په مقابله کښے ګواه راوړاندې کړو

وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى

او مونږ نازل کړو | په تا باندې | دا کتاب (قرآن) | بیانولو دَ پاره | دَ هر څیز | او هدایت

او مونږ په تا باندې دا کتاب (قرآن) نازل کړے دے چه په دے کښے دَ هر څیز واضح بیان دے او مسلمانانو

وَّرَحْمَةً وَّبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ ۞ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُ

او رحمت | او زیرے | مسلمانانو دَ پاره | بیشکه | الله | حکم کوی

دَ پاره هدایت، رحمت او زیرے دے - الله تعالیٰ یقینًا تاسو ته دَ انصاف او دَ

بِالْعَدْلِ وَالْاِحْسَانِ وَاِيْتَآئِ ذِي الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى

دَ انصاف | او دَ نیکئ | او دَ امداد ورکولو | خپلوانو ته | او منع کوی

نیکئ کولو او خپلوانو ته دَ (مالی) امداد ورکولو حکم کوئ او دَ بے حیایئ

عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ ج يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۞

له بے حیایئ نه | او له بدئ | او ظلم نه | هغه نصیحت کوی تاسو ته | چه تاسو | نصیحت حاصل کړئ

دَ بدو کارونو او دَ سرکشئ نه منع کوی او تاسو ته نصیحت کوی چه تاسو نصیحت حاصل کړئ

وَاَوْفُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ اِذَا عٰهَدْتُّمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْاَيْمَانَ

او پوره کړئ | وعده | دَ الله | هر کله چه | تاسو وعده وکړئ | او مه ماتوئ | قسمونه

او دَ الله تعالیٰ وعده پوره کړئ ، هر کله چه تاسو وعده وکړئ او قسمونه دَ پخولو نه پس

الثلثة

ركوع ١٢ / ١٨

بَعْدَ تَوْكِيْدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللّٰهَ عَلَيْكُمْ كَفِيْلًا

دَ هغې دَ ټینګولو نه پس | او بیشکه جوړکړے دے تاسو | الله | په خپلو ځانونو باندې | ضامن

مه ماتوئ حال دا دے چه تاسو په خپل ځان باندې الله تعالیٰ ضامن جوړکړے دے

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ ﴿٩١﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّتِيْ نَقَضَتْ

بیشکه | الله | پوهیږی | په هغه څه چه تاسو کوئ | او مه کیږئ تاسو | په شان دَ هغه ښځې | چه وسپړدل هغې

بیشکه الله تعالیٰ ستاسو دَ ټولو کارونو نه خبر دے. او تاسو دَ هغې ښځې په شان مه کیږئ چه خپل تارونه

غَزْلَهَا مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ اَنْكَاثًا ۭ تَتَّخِذُوْنَ اَيْمَانَكُمْ دَخَلًا ۢ

ریشلی شوی پنړسی خپل | پس دَ مضبوطولو نه | ټوټے ټوټے | تاسو جوړوئ | خپل قسمونه | دَ دخل ورکولو ذریعه

به ئے دَ مضبوطولو نه پس بیا ریښه ریښه کړل، چه (په چل ول) تاسو هم خپل قسمونه دَ فساد کولو ذریعه

بَيْنَكُمْ اَنْ تَكُوْنَ اُمَّةٌ هِيَ اَرْبٰى مِنْ اُمَّةٍ ۭ اِنَّمَا

په خپل مینځ کښے | چه شی | بوه ډله | اُوچته (غالب) | له بلے ډلے نه | بیشکه

وګرځوئ، په دے غرض چه یو ټولے دَ بل ټولی نه زیاته فائده اوچته کړی - الله هم دغے

يَبْلُوْكُمُ اللّٰهُ بِهٖ ۭ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

ازمیښت کوی په تاسو | الله | په دے سره | او خامخا به ښکاره کړی | په تاسو | په ورځ | دَ قیامت

ستاسو ازمیښت کوی، او دَ قیامت په ورځ به درته هغه ټول (حقیقت) ښکاره

مَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿٩٢﴾ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ

هغه خبره | په کومه کښے چه تاسو | اختلاف کولو | او که غوښتلے | الله | نو جوړکړی به ئے وی تاسو

کړی چه تاسو په کښے اختلاف کولو. او که الله تعالیٰ غوښتلے نو تاسو ټول به ئے

اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ يُّضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ

اُمت | هم یو | لیکن | هغه ګمراه کوی | هغه څوک | چه هغه وغواړی | او هدایت کوی

یو امت کړی وئ. خو هغه چه دَ چا په حقله وغواړی نو هغه ګمراه کړی او دَ چا په حقله چه

مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَلَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٣﴾

هغه چا نه چه | هغه وُغواړی | او تاسو نه به ضرور تپوس کیږی | دَ هغو (عملونو) په حقله | چه تاسو به کول.

وغواړی نو هدایت ورته کوی او تاسو چه څه کارونه کوئ دَ هغې په حقله به درنه خامخا پوښتنه کیږی.

وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اَيْمَانَكُمْ دَخَلًا ۢ بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌ ۢ

او تاسو مه جوړوئ | خپل قسمونه | دَ دخل ورکولو ذریعه | په خپل مینځ کښے | چه وُخوئیږی | قدم

او (اے مؤمنانو!) تاسو خپل قسمونه یو بل له دَ دوکے ورکولو ذریعه مه جوړوئ، هسے نه چه دَ چا قدم دَ

بَعْدَ ثُبُوْتِهَا وَتَذُوْقُوا السُّوْٓءَ بِمَا صَدَدْتُّمْ

پس | دَ کلکوالی دَ هغې نه | او تاسو وُ څکئ مزه | دَ بدئ (مصیبت) | په سبب دَ هغې | چه منع کول به تاسو

مضبوطیا نه پس (بیا) وخوئیږی او تاسو ته په دے خبره تکلیف وُرسی چه خلق به دَ الله تعالیٰ دَ لارے

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٩٤﴾ وَلَا تَشْتَرُوْا

لارے نه | دَ الله | او تاسو دَپاره | عذاب دے | ډیر لوئے ۔ | او تاسو مه اخلئ

نه منع کول او تاسوله به ډیر لوئے عذاب درکړے شي ۔ او دَ الله تعالیٰ (سره کړے) دعهٔ

بِعَهْدِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۭ اِنَّمَا عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرٌ

په بدل دَ وعدے دَ الله | قیمت | لږ | بیشکه څهٔ چه | دَ الله سره دی | هغه | ډیر غوره دی

(دَ دنیا) دَ لږے فائدے په عوض مهٔ خرڅوئ . بیشکه کوم عوض ته چه الله تعالیٰ سره دی هغه تاسوله ډیر

لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٩٥﴾ مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا

تاسو دَپاره | که چرے تاسو | پوهیږئ ۔ | هغه څهٔ چه | تاسو سره دی | هغه به فنا کیږی | او څهٔ چه

بهتر دی که تاسو پرے پوهیږئ ۔ څهٔ چه تاسو سره پرانهٔ دی هغه به ختم شي او څهٔ چه

عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ ۭ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِيْنَ صَبَرُوْٓا اَجْرَهُمْ

دَ الله سره دی | هغه (تل) باقي پاتے کیدونکی دی | او مونږ به ضرور ورکړو | هغوته | کوموچه صبر وکړو | اجر دَ دوی

الله سره پرانهٔ دی هغه (تل) باقي (پاتے) دی او خوک چه ثابت قدم پاتے شو هغوئ ته به مونږ خامخا پل

بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٦﴾ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ

دَ دے نه غوره | هغه (عملونه) | چه دوی به کول | چا چه عمل وُکړو | نیک | سړے وی

اجر ورکوُ دَ هغو ښو کارونو په عوض کښے کوم چه هغوئ کول ۔ نیک عمل چه هر څوک کوی که نارینه وی او که

اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً ۚ

او که ښځه وی | او هغه | مؤمن وی | نو مونږ به خامخا ژوندی ورکړو هغهٔ ته | ژوند | پاکیزه

زنانه خو چه هغه مومن وی ، نو مونږ به ورله ضرور (په دنیا کښے) پاکیزه ژوند ورکوو

وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٧﴾ فَاِذَا

او مونږ به خامخا ورکړو دوی ته | دَ دوی اجر | دَ دوی دَ ښو عملونو | چه دوی به کول ۔ | بیا هر کله چه

او خامخا به ورله (په آخرت کښے) دَ هغوئ دَ ښو کارونو په عوض کښے اجر ورکوُو ۔ نو هر کله چه

قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ﴿٩٨﴾ اِنَّهٗ لَيْسَ

ته لوُلے | قرآن | نو پناه غواړه | دَ الله | دَ شیطان | رټلے شوی نه | بیشکه نهٔ دے

تهٔ قرآن لوستل غواړے نو دَ شیطان مردود (دَ شر) نه پناه غواړه ۔ دَ هغهٔ قابو په

لَهٗ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿٩٩﴾ اِنَّمَا

دَ ده | (څهٔ) زور | په هغو خلقو چه | ایمان ئے راوړو | او په خپل رب باندے | توکل کوی | بیشکه چه

داسے خلقو نهٔ چلیږی چه ایمان ئے راوړے وی او په خپل رب توکل کوی ۔ دَ هغهٔ قابو خو

سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يَتَوَلَّوْنَهٗ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِهٖ مُشْرِكُوْنَ ﴿١٠٠﴾

غلبه دَ ده | په هغو خلقو دا چه | دوستی کوی دهٔ سره | او کوم خلق چه | دَ الله سره | شریک مقرروی ۔

بس په هغه چا چلیږی چه هغه خپل دوست گنړی او (هغهٔ په تعلیم) الله له شریکان پیدا کوی ۔

ع ۱۳ / ۱۱ / ۱۹

وَإِذَا بَدَّلْنَآ ءَايَةً مَّكَانَ ءَايَةٍ ۙ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ

اوهر کله چه | بدل کړو موږ | یو آیت | په ځائے | د بل آیت | او الله | ښهٔ پوهه دے | په هغه څه | چه هغهٔ نازلوی

او هر کله چه موږ د یو آیت په بدل کښے بل آیت راولیږو ، او الله تعالیٰ په هغے ښهٔ پوهیږی څه چه

قَالُوٓا۟ إِنَّمَآ أَنتَ مُفْتَرٍۭ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝١٠١ قُلْ

نو دوی وائی | بیشکه | چه ته | له ځان نه جوړونکے یئے | بلکه اکثر د دوی | نهٔ | پوهیږی | ووایه

رالیږی نو دا خلق و وائی چه ته خو بس تش دروغ تړونکے یئے ، نا ! بلکه په دوی کښے اکثر خلق نهٔ پوهیږی

نَزَّلَهُۥ رُوحُ ٱلْقُدُسِ مِن رَّبِّكَ بِٱلْحَقِّ لِيُثَبِّتَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟

نازل کړے دے دا | روح القدس (جبرائیل) | ستا د رب له طرف نه | په حق سره | چه مضبوط کړی (په ایمان) | مؤمنان

ته ووایه چه دا جبرائیل امین ستا د رب له طرف نه په حقه نازل کړے دے چه د ایماندارو خلقو ایمان پرے

وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ۝١٠٢ وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّهُمْ

او هدایت | او زیرے دے | مسلمانانو د پاره | او بیشکه موږ پوهیږو | چه دوی

مضبوط کړی او د مسلمانانو د پاره هدایت او زیرے دے ۔ او موږ ته ښهٔ معلومه ده چه دوی

يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُۥ بَشَرٌ ۗ لِّسَانُ ٱلَّذِى يُلْحِدُونَ

وائی | بیشکه چه | ده ته زده کوی | یو انسان | ژبه | د هغه چا | دوی نسبت کوی

وائی چه ده ته خو یو سړے ښود نه کوی (حال دا) چه کوم سړی ته دوی دا سے بر ناحقه نسبت

إِلَيْهِ أَعْجَمِىٌّ وَهَٰذَا لِسَانٌ عَرَبِىٌّ مُّبِينٌ ۝١٠٣ إِنَّ ٱلَّذِينَ

طرف د هغهٔ ته | عجمی (غیر عربی) ده | او دا | ژبه | عربی ده | واضحه | بیشکه | هغه خلق چه

کوی د هغهٔ ژبه خو عجمی ده او دا قرآن خو په صفا عربئ ژبه کښے راغلے دے ۔ څوک چه د

لَا يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ۙ لَا يَهْدِيهِمُ ٱللَّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ

ایمان نهٔ راوړی | په آیتونو د الله | لار نهٔ ښائی دوی ته | الله | او دوی د پاره | عذاب دے

الله تعالیٰ په آیتونو ایمان نهٔ راوړی ، الله تعالیٰ هغوی په سمه لار نه بوځی ، او هغوی له دردناک

أَلِيمٌ ۝١٠٤ إِنَّمَا يَفْتَرِى ٱلْكَذِبَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ

دردناک | بیشکه | جوړوی | دروغ | هغه خلق | چه ایمان نهٔ لری

عذاب مقرر دے ۔ دروغ تړونکی خو هغه خلق دی چه د الله تعالیٰ په آیتونو باندے

بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰذِبُونَ ۝١٠٥ مَن كَفَرَ بِٱللَّهِ

په آیتونو د الله | او هم دا خلق دی | دروغژن | څوک چه انکار وکړی | د الله

ایمان نهٔ راوړی ، او هم دا خلق پوره دروغژن دی ۔ څوک چه د ایمان راوړو نه پس بیا

مِنۢ بَعْدِ إِيمَٰنِهِۦٓ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُۥ مُطْمَئِنٌّۢ

د خپل ایمان راوړو نه پس | سوا د هغه چا نه | چه مجبوره کړے شوی | او د ده زړهٔ | مطمئن وی

د الله تعالیٰ نه انکار وکړی سوا د هغه چا نه کوم چه مجبوره کړے شی ، او د هغهٔ زړهٔ په ایمان باندے

بِالْاِيْمَانِ وَلٰكِنْ مَّنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ
په ایمان | لیکن | ځوک چه | پرانیزی | په کفر سره | (خپله) سینه | نو په هغوئ باندې
مطمئن وی (نو دا بې بندلا مستثنیٰ دے) خو چا چه خپله سینه کفر ته پرانستله ، نو په هغوئ به

غَضَبٌ مِّنَ اللّٰهِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۰۶﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ
غصه | دَ الله | او دوی دَپاره دے | عذاب | ډیر لوئے | دا حُکه چه دوی
دَ الله تعالیٰ غضب وی ، او هغوئ له لوئے عذاب مقرر دے . دا ځکه چه دوئ

اسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى
خوښ کړو | ژوند دَ دنیا | په آخرت | او دا چه الله | لاره نهٔ ښائی
دَ آخرت په مقابله کښې دَ دُنیا ژوند خوښ کړو ، او دا چه الله تعالیٰ کافرانو خلقو ته

الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۷﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ
قوم | دَ کافرانو ته | هم دا خلق دی چه | مُهر وهلے دے | الله
سمه لاره نهٔ ښائی . هم دا هغه خلق دی دَ کومو په زړونو ، غوږونو

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ
دَ دوی په زړونو | او دَ دوی په غوږونو | او دَ دوی په سترګو | او هم دا خلق دی
او سترګو باندې چه الله تعالیٰ مهر لګولے دے ، او هم دا خلق (دَ خپل

الْغٰفِلُوْنَ ﴿۱۰۸﴾ لَا جَرَمَ اَنَّهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۰۹﴾
(دَ دین نه) بے خبره | هیڅ شک نشته | چه دوی | په آخرت کښې | نقصان مونده ونکی دی
انجام نه) بے خبره دی ، دا لازمی خبره ده چه په آخرت کښې به دا خلق په زیان کښې پراته وی .

ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ هَاجَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا فُتِنُوْا
بیا | بیشکه ستا ربّ | هغو خلقو دَپاره | چه هجرت ئے وکړو | پس له دے نه چه | په مصیبتونو کښې واچولے شول
دَ دوئ برعکس ستا پروردګار دَ هغه چا په حقله چه په سختو سختو آزمیښتونو کښې اچولے شوی

ثُمَّ جٰهَدُوْا وَصَبَرُوْٓا ۙ اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ
بیا | هغوی جهاد وکړو | او صبر ئے وکړو | بیشکه | ستا رب | پس له هغے نه | بخښونکے
وو او دَ هغے نه پس ئے هجرت وکړو او (په تکلیفونو باندې ئے) دَ صبر نه کار واخستو ، نو ستا رب دَ دے کارونو نه

ع ۱۴ / ۲۰

رَّحِيْمٌ ﴿۱۱۰﴾ يَوْمَ تَاْتِىْ كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَّفْسِهَا
مهربان دے | په هغه ورځ | چه راپه شی | هر یو کس | چه جګړه به کوی | دَ خپل طرف نه
پس بخښونکے مهربان دے . په کومه ورځ چه به هر ځوک دَ خپل طرف نه راځی ، او جګړه به کوی

وَتُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ وَضَرَبَ
او پوره به ورکړے شی | هر نفس ته | څه چه ده کړی وی | او په دوی به ظلم نهٔ شی کولے | او بیان کړو
او هر چا ته به دَ ده دَ عملونو پوره پوره بدله ورکولے شی او په دوی به ظلم نهٔ شی کولے ، او الله تعالیٰ

اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَىِٕنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا

الله | مثال | دَ يو کلي | چه وو هغه په امن آرام نيونکے | راتلله به هغوی ته | روزي دَ هغوی

دَ يو کلي دَ خلقو مثال ورکوي چه هغوی په امن او اطمينان سره وسيدل ، روزي به ورته فراخه

رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ

فراخه | له هر ځائے نه | بيا ناشکري وکړه دغه کلي | دَ نعمتونو دَ الله | پس وڅکولو هغوی ته الله

دَ هر ے غاړے نه راتله ، خو هغوی دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو ناشکري وکړه ، نو الله تعالیٰ

لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿١١٢﴾

جامه | دَ لوږے | او دَ ويرے | په سبب دَ هغه څهٔ چه | دوی به کول .

دَ هغوی دَ عملونو په وجه په هغوی باندې لوږے قحط او ويره راوستله

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ

او بيشکه راغے دوی ته | يو پيغمبر | له دوی نه | پس دوی دروغژن وګڼړلو هغه | نو ونيول دوی لره

او بيشکه هغوی ته هم له هغوی نه يو پيغمبر راغے نو هغوی دے دروغژن وګڼړلو نو هغوی عذاب

الْعَذَابُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿١١٣﴾ فَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا

عذاب | او دوی ظالمان وو | پس خورئ | له هغه څهٔ نه | چه روزي درکړے ده تاسو ته الله | حلاله

ونيول او هغوی ظالمان وو - پس څهٔ چه الله تعالیٰ تاسو له درکړی دی ، له هغے نه حلال

طَيِّبًا ۪ وَّاشْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿١١٤﴾

پاکيزه | او شکر کوئ | دَ نعمت دَ الله | که چرے تاسو هم دَ هغهٔ | عبادت کوئ

او پاکيزه څيزونه خورئ ، او دَ الله تعالیٰ په نعمتونو شکر وباسئ که تاسو د په رښتيا ، دَ هغهٔ عبادت کوئ

اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ

بيشکه | هغهٔ حرام کړے ده | په تاسو | مرداره | او وينه | او غوښه | دَ خنزير

هغهٔ خو په تاسو باندې مرداره او وينه او دَ خنزير غوښه او کوم څيز چه دَ الله تعالیٰ نه

وَمَآ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ

او هغه څهٔ | چه پرے نامه ياد شوی وی دَ غير الله | بيا څوک چه مجبور شي | نافرمانه نهٔ وی | او نهٔ دَ حد نه تيريدونکے وی

سوا دَ بل چا په نامه منلے شوے وی حرام کړی دی ، بيا څوک چه مجبور شي او نافرمانه او دَ حد نه تيريدونکے نه

فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١١٥﴾ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ

نو بيشکه الله | بخښونکے | مهربان دے | او تاسو مهٔ وايئ | هغه څيز ته | چه بيانوی

وی نو بيشکه الله تعالیٰ بخښونکے مهربانه دے - او تاسو مهٔ وايئ هغه چه ستاسو ژبے دروغ

اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ

ژبے ستاسو | په دروغه | چه دا حلال دی | او دا حرام دی | دَ پاره دَ دے چه تاسو وتړئ | په الله

بيانوی ، چه دا حلال دی او دا حرام دی ، نتيجه ئے [illegible] دا شي چه تاسو په الله باندې

الْكَذِبَ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ ؕ﴿١١٦﴾

دروغ | بیشکه | کوم خلق چه | تړی | په الله باندې | دروغ | هغوی نا کامیا بیږی

دروغ وتړئ ، بیشکه څوک چه په الله تعالیٰ دَ دروغو تهمتونه لګوی هغوئ هیڅکله نجات نهٔ بیا مومی

مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ۖ وَّلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿١١٧﴾ وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا

(داخو) فائده ده | لږ شان | او دوی دَ پاره | عذاب دے | دردناک | او په هغو باندې | چه یهودیان دی

(دَ دنیا) لږ شان عیش دے او (بیا) هغوئ له دردناک عذاب مقرر دے۔ او څوک چه دَ یهودو په دین دی

حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ ۚ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ

حرام کړل مونږ | هغه څهٔ چه | مونږ بیان کړی دی | په تا | له دے نه وړاندې | او ظلم نهٔ دے کړے مونږ په دوی

په هغوئ باندې مونږ هغه څیزونه حرام کړی وو کوم چه موتاته مخکښې بیان کړی دی۔ او مونږ په هغوئ باندې هیڅ

وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿١١٨﴾ ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ

او لیکن دوی | په خپلو ځانونو | ظلم کولو | بیا | بیشکه ستا رب | هغو خلقو دَ پاره

زیاتے نهٔ دے کړے ، بلکه هغوئ پخپله په ځان زیاتے کولو۔ بیا بیشکه ستا رب هغو خلقو دَ پاره کوم چه

عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ

چه عملونه ئے وکړل | خراب | په ناپوهئ سره | بیا توبه ئے وکړی | پس له دے نه

په ناپوهئ سره بَدْ عملونه وکړل بیا له هغے نه پس هغوئ توبه وکړی او خپل

وَاَصْلَحُوْٓا ۙ اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١١٩﴾

او اصلاح ئے وکړی | بیشکه ستا رب | پس له هغے نه | بخښونکے | مهربان دے

ځان سم کړی نو پس له دے نه ستا رب یقیناً بخښونکے مهربان دے

اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ كَانَ اُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِيْفًا ؕ وَلَمْ يَكُ

بیشکه | ابراهیم | وو | لوئے پیشوا | فرمانبردار | دَ الله | یو مخیزے (حق ته مائل) | او نهٔ وو هغه

بیشکه ابراهیم (دَ خلقو) لوئے پیشوا دَ الله تعالیٰ فرمان منونکے او صرف حق طرف ته مائل وو۔ او هغه له

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٢٠﴾ شَاكِرًا لِّاَنْعُمِهٖ ؕ اِجْتَبٰىهُ وَهَدٰىهُ

له مشرکانو نه | شکر کونکے وو | دَ هغهٔ دَ نعمتونو | هغهٔ دے غوره کړے وو | او دهٔ ته ئے هدایت وکړو

مشرکانو نه نهٔ وو ، دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو شکرګزار وُو ، (الله تعالیٰ) دے غوره کړے وو او په سمه

اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿١٢١﴾ وَاٰتَيْنٰهُ فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً ؕ وَاِنَّهٗ

سمے لارے طرف ته | او ورکړه مونږ دهٔ ته | په دُنیا کښے | ښیګړه | او بیشکه دے په

لارے ئے روان کړے وو۔ او مونږ ورته په دُنیا کښے هم ښهٔ حالت ورکړے وو او په آخرت

فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٢٢﴾ ثُمَّ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ اَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ

په آخرت کښے هم | له نیکو بندګانو نه دی | بیا مونږ وحی وکړه | ستا طرف ته | چه پیروی وکړه | دَ دین

کښے خو په صالحانو کښے شمیر دے۔ بیا مونږ تاته دا وحی وُکړه چه دَ ابراهیم ؑ په لاره

إِبْرٰهِيمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۲۳﴾ إِنَّمَا جُعِلَ

دوان او سه چه یو مخیزے وو او په مشرکانو کښے شامل نه وو . (دَ) سبت (احترام) خو په هغه

السَّبْتُ عَلَى الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ ۚ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ

چا مقرر شوے وو چه په دے حقله ئے اختلاف کړے وو او بیشکه ستا رب به دَ قیامت په ورځ

بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿۱۲۴﴾ اُدْعُ

دَ دوی په مینځ کښے فیصله وکړی په کومو خبرو کښے چه دوئ اختلاف کولو . ته دَ خپل رب

إِلٰى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ

دَ لارے طرف ته په حکمت او په ښهٔ نصیحت سره بلنه کوه ، او دوئ سره په

بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ

بهتره طریقه بحث کوه ، بیشکه ستا رب ته ښهٔ معلومه دَه چه څوک دَ هغهٔ دَ لارے نه

عَنْ سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿۱۲۵﴾ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ

گمراه شوے دے؟ او هغه دَ هدایت خاوندان هم ښهٔ پیژنی . او کهٔ تاسو بدله اخستل

فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ ۖ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ

غواړئ نو بس دومره قدر درد ورته ورسوئ څومره چه تاسو ته رسیدلے وی او کهٔ صبر وکړئ نو دا کار د

خَيْرٌ لِلصّٰبِرِينَ ﴿۱۲۶﴾ وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللّٰهِ

صبر کوونکو دَ پاره ډیر بهتر دے، او (اے پیغمبره!) ته صبر کوه او ستا صبر خو بس دَ الله تعالیٰ په توفیق

وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِمَّا يَمْكُرُونَ ﴿۱۲۷﴾

دے او دَ دوئ په حال غم مهٔ کوه ، او دَ دوئ په فریبونو خپل زړهٔ مهٔ تنګوه

إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا وَالَّذِينَ هُمْ مُحْسِنُونَ ﴿۱۲۸﴾





(۱۷) سُورَةُ بَنِي إِسْرَآءِيلَ مَكِّيَّةٌ ۔ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ ۔ إِحْدٰى عَشْرَةَ آيَةً وَاثْنَا عَشَرَ رُكُوعًا

(شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

شروع کوم دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے۔

سُبْحٰنَ الَّذِي أَسْرٰى بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَا الَّذِي بٰرَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ

مِنْ اٰيٰتِنَا ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴿۱﴾ وَاٰتَيْنَا مُوسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ

هُدًى لِبَنِي إِسْرَآءِيلَ أَلَّا تَتَّخِذُوا مِنْ دُونِي وَكِيلًا ﴿۲﴾ ذُرِّيَّةَ مَنْ

حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ ۚ إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا ﴿۳﴾ وَقَضَيْنَا

إِلٰى بَنِي إِسْرَآءِيلَ فِي الْكِتٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ

وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ﴿۴﴾ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ أُولٰىهُمَا بَعَثْنَا

عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَنَا أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا خِلٰلَ الدِّيَارِ ۚ

وَكَانَ وَعْدًا مَفْعُولًا ﴿۵﴾ ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنٰكُمْ

إِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۗ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٢٣﴾ إِنَّمَا جُعِلَ

روان او سه چه يو مخيزے وو او په مشركانو كښې شامل نه وو . (دَ) سبت (احترام)

السَّبْتُ عَلَى الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۗ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ

چا مقرر شوے وو چه په دے حقله ئے اختلاف كړے وو او بيشكه ستا رب به دَ قيامت په ورځ

بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿١٢٤﴾ اُدْعُ

دَ دوى په مينځ كښې فيصله وكړى په كومو خبرو كښې چه دوئ اختلاف كولو . تهٔ دَ خپل رب

إِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ

دَ لارے طرف ته په حكمت او په ښهٔ نصيحت سره بلنه كوه ، او دوئ سره په

بِالَّتِيْ هِيَ أَحْسَنُ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ

بهتره طريقه بحث كوه ، بيشكه ستا رب ته ښهٔ معلومه ده چه څوك دَ هغهٔ دَ لارے نه

عَنْ سَبِيْلِهٖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿١٢٥﴾ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ

گمراه شوے دے؟ او هغه دَ هدايت خاوندان هم ښهٔ پيژنى . او كهٔ تاسو بدله اخستل

فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ ۗ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ

غواړئ نو بس دومره قدر درد ورته ورسوئ څومره چه تاسو ته رسوے وى او كهٔ صبر وكړئ نو دا كار

خَيْرٌ لِّلصّٰبِرِيْنَ ﴿١٢٦﴾ وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللّٰهِ

صبر كوونكو دَ پاره ډير بهتر دے ، او (اے پيغمبره!) ته صبر كوه او ستا صبر خو بس دَ الله تعالىٰ په توفيق

وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِيْ ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُوْنَ ﴿١٢٧﴾

دے او دَ دوئ په حال غم مهٔ كوه ،، او دَ دوئ په فريبونو خپل زړهٔ مهٔ تنگوه

إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّالَّذِيْنَ هُمْ مُّحْسِنُوْنَ ﴿١٢٨﴾

بيشكه الله تعالىٰ دَ هغه چا سره مل دے څوك چه پرهيزگاروى او څوك چه ښهٔ سلوك ساتى





بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اِحْدٰى عَشْرَةَ اٰيَةً وَّاثْنَا عَشَرَ رُكُوْعًا

(شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډير زيات رحم كوونكے دے | په دے كښې ١١١ ايتونه او ١٢ ركوع دى

شروع كوم دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډير زيات رحم خاوند دے .

سُبْحٰنَ الَّذِيْٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

هغه پاك ذات دے چه خپل بنده (محمد صلى الله عليه وسلم) ئے شپه په شپه دَ مسجدِ حرام (خانه كعبه) نه

إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَا الَّذِيْ بٰرَكْنَا حَوْلَهٗ لِنُرِيَهٗ

دَ مسجد اقصىٰ (بيت المقدس) ته بوتلو چه دَ هغهٔ گير چاپيره (علاقے) له مونږ بركتونه وركړى دى چه مونږ دهٔ ته

مِنْ اٰيٰتِنَا ۗ إِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ﴿١﴾ وَاٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ

بيشكه الله تعالىٰ آوريدونكے او ليدونكے دے او مونږ موسىٰ ته كتاب وركړو او دا (كتاب) مونږ

هُدًى لِّبَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ اَلَّا تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِيْ وَكِيْلًا ﴿٢﴾ ذُرِّيَّةَ مَنْ

بنى اسرائيلو دَ پاره دَ هدايت ذريعه گرځولے وه چه (خبردار) زما نه بغير بل هيڅوك خپل كارساز ونه گڼړئ اے دَ هغه چا اولاده

حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ۗ إِنَّهٗ كَانَ عَبْدًا شَكُوْرًا ﴿٣﴾ وَقَضَيْنَآ

چه مونږ دَ نوحٌ سره (په كشتئ كښې) سواره كړى وو ، بيشكه نوحٌ يو شكرگزار بنده وو . او مونږ بنى اسرائيلو ته په

إِلٰى بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ فِي الْكِتٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ

كتاب كښے دا خبره په گوته كړے وه چه تاسو به په ملك كښې دوه ځله فساد كوئ

وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيْرًا ﴿٤﴾ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ أُوْلٰىهُمَا بَعَثْنَا

ډيره سركشى به كوئ ، پس هر كله چه په دوؤ كښې دَ وړومبئ وعدے (دَ پوره كيدو) وخت راغے

عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَآ أُوْلِيْ بَأْسٍ شَدِيْدٍ فَجَاسُوْا خِلٰلَ الدِّيَارِ ۗ

مونږ په تاسو باندې خپل داسے بنديان ؤكومارل چه هغوئ ډير جنگيالى وو ، نو ستاسو په كورونو درننوتل او

وَكَانَ وَعْدًا مَّفْعُوْلًا ﴿٥﴾ ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنٰكُمْ

وعده وه چه خامخا به پوره كيدله . بيا مونږ (دوباره) تاسو له په هغوئ باندې غلبه دركړله او په مالونو او په